له ما ،

له ما خوښي ، له ما طرب مه غواړئ !

۱۳۶۱/۷/۱۷

پېښور ، کبابیان

# مځکه ، بې*

په خپل کلي ، خپل وطن کښې روغ رمټ وو
شو مرګونی رنځ ناڅاپه را عیـــــان
وو « ویروس » یې له وروس ځمکه راغلی
د مځکه ، بې په رنځ تباه شول افغـــانان

۱۳۶۱/۷/۱۱ پېښور

# نقاهت*

د مځکه ، بې له رنځه خلاص شو که خدای کاندې
بس اوس پاتې یې دوره د « نقاهت » ده !
سوروکوې سره ماښام ته رســـیدلی
د روسي ښنکېلاک تخته د میخ ترکټ ده

۶۵/۳/۱۰ پنجاب ، لارنس پور

---

* مځکه ، بې د تره کي او ببرک د نوموړ د سرتېکي دي چې د توبرکلوز د ناروغۍ نوم هم دی او دا نوم دا یخلس کاله د واړه دې لوته پر کابل کې اخېستل کېده ، نقاهت هم د نجیب د نامه له سرتکي ځخه جوړ شوی دی.

# د وینو باران

آسمانه واوره باران مه اوروه !
زه لاد وینو بارانونه لرم
ستا څوکو ونکی غاڅول نه غوارمه
چې د شهید ګل ، پرهرونه لرم

***

آسمانه واوره باران مه اوروه !
په وینو پالم د وطن ګلونه
کرم او به خوربه یې د تن په وینه
تازه به ساتم د چمن ګلونه

***

آسمانه واوره باران مه اوروه !
زه د غلیم پر سر بلنې اوروم
چې زما لورته یې کاږه کتلي
په سره د ښمن مې سرې ګولۍ اوروم

***

آسمانه واوره باران مه اوروه!
زه لا د وینو بارانونه لرم
د وخت فرعون ته توپان جوړ وم
لا په آمو کښې غورځنګونه لرم

۱۳٦۳/۱/۱۴

پېښور

## دولت که دوړلت

دا "دولت" رښتیا "دوړلت" دی
هم سبکڅل کا هم وهل کا
تر "دوړلت" لا پسې تېر دی
وحشیانه انسان وژل کا

۱۳۵۷/۱۱/۲۷، کابل

## زحمت کَش او زحمت کُش

زحمت کَش یې زحمت کُش په زحمت کَش کړل
جبري کار ته، زندانو ته، ادیرو ته
په رښتیا د زحمت کښو حکومت دی
زحمت ویشي ښار ته، کلیو ته، دیرو ته

۲۸/۸/۱۳٦۱، پېښور

# راسره وژړل

زه یوازې نه یم ټول افغان راسره وژړل!
هر یو بشر دوست په آه افغان راسره وژړل!

زما د سوي زړه ، سوې ژړا چې یې تر غوږ شو
زړه یې چې درلود هر یو انسان راسره وژړل!

د هر لوی مصیبت زما په کور کښې سترګې پرانیستې
دا چې هم کافر هم مسلمان راسره وژړل!

چیغه مې د غم لکه ققنس له سوزه پکه وه
شا او خوا مې ټول ساز او سامان راسره وژړل!

سپینې مرغلرې د شبنم هر ګل را پر ښودې
د هر مې وو غمونه ، ګلستان راسره وژړل!

ما چې په تور تم درنهو او ښکو د هوې بلې کړې
ستورې یې را کوز کړل کهکشان راسره وژړل!

څر پکه مې د زړه چې په پټرې شونډو کې کړیکه شو
توې یې تنې کړلې ګریوان راسره وژړل!

زه یو آواره یم ، کله هلته ، کله دلته یم
او ښکې سرګردانې دې آسمان راسره وژړل!

نه یم پوه واړه زړه کښې یې څه اندیښنه تېره شوه
ما «رفیع» چې وژړل، «امان» راسره وژړل!

۱۳۶۹/۷/۲۵

پېښور

## «اکسا، کام، خاد»

په «اکسا» کښې یې حق سا «هم ترینه سلب کړه
«کام» ناکام، کړل د ځوانانو ارمانونه
د، «وحشت دا انسان سوز ماشین چې «خاد» شو
کړل «نابناد» یې په زرګونه، په لکونه

۱۳۶۱/۸/۲۹

## شاه شجاع او ببرک شا

پنځوس زره انګریزي پوځ ورپسې وُ
شاه شجاع بریت تاوول سپرد دفاع وُ
خو یو لک خرسان ترځ، ببرک ترشا ته
دا دی ځکه «ببرک شا» ها «شا شجاع» وُ

پېښور، ۱۳۶۱/۸/۲

# خاکِ من

برو!

برو!

برو!

از مرزهای ما

به مرزهای خویش

اشغالگر بی رحم

استمگر زمان !

برو! برو! زین خاک ما و زین وطن ما!

* * *

این میهن آزادگان

از قرن های قرن

آزاد بوده است

آزاد زیسته است

برو!

برو!

برو!

ای کرگسک پیر

عقابها

اسیر صیادان نبوده است

* * *

این خاکِ پاک ما

از سالهای سال

از قرنهای قرن

از چشمه های پاک

و زرگهای تاک

ما را باده یی

ز ازادی داده است !

* * *

اینجاست

ملتی

غیور و با ایمان

دلدادهٔ ازادی و آزادگیی خویش

اندر نبرد حق

در راه حفظ خاک

سر میدهد آسان
هرگز زکف آزادی وطن نمیدهد

* * *

این میهن عزیز
فرزند تاریخی وکهنسال جهان است
آزاد و مستقل ؛
در طول زمان است
تا هست این جهان
تا هست یک افغان
این میهن ما نیز
آزاد میماند
آزاد میباشد
برو !
برو !
برو !
از مرزهای ما ،
به مرزهای خویش

آنجاست خاک تو

اینجاست خاک من !

۱۳۵۸/۱۲/۱۰

کابل، زندان پلچرخی

# د لستوڼي مار

بل کارې ګوزار پرې وکړئ پرې يې نن دئ

پاس په سر يې چې خوړلی دا ګوزار دی

خپلواکي نعمت ته نه شئ رسيدلی

څو ژوندی دا د لستوڼي د منځ مار دی

۱۳۵۸/۶/۲۲ کابل

# رجيم

د پردو په مټو واک ته رسيدلی

سره ښکېلاک را استولی مستقيم دی

ځکه هر افغان يې ولي په سر کاڼي

د ببرک رژيم رژيم نه دی رجيم دی

۱۳۶۱/۸/۲۹

پېښور

# د وینو بهیر

خلکو یې ځایه تورن کړي شرمښان په وینو
یا یې بې رحمه شان بللي دي پړانګان په وینو
خو په خونړېز کښې کمونستو تر دوی واړه وله
چې یې ماړه د انسانانو کړل لیوان په وینو
اوس مو پخپلو سترګو ولیدل پخپل وطن کښې
مونږ اورېدلي وو چې رغښتل به اوښان په وینو
یادونه پرېږدي فریادونه له هر خوانه آورم
د هسک مرغونه هم افغان کړي د افغان په وینو
زما په ګران وطن کښې دومره وینې توې شولې
چې ښایي لوند په ځای د اوښکو کړم ګریوان په وینو
تورې لوخړې د بمونو ترې راپورته شولې
کورونه رنګ شول کلي رنګ شول د انسان په وینو
سترګې تیاره شي مرې خواته وینې وینې وینم
چې راپه یاد شي لړل شوي شهیدان په وینو

پرشکسته‌بال پرنده در فضائیکه پهنای آن خلای میان زندگی ومرگ است پر افشان میکوشم این جوتهی را با نفس های آخرین خویش پُر کنم و ذره های خاک را با منقار پرندهٔ خویش ببوسم.

این شعر مانند اکثر اشعار رفیع از سلاست و روانی بهره مند است و رشتهٔ آن گره ندارد بدرستیکه:

آب بود معنیٔ روشن کلیم
خوب اگر بسته شود گوهراست

اکثر شعرای زبان پښتو در عصریکه من به آن تعلق داشته ام شاعران طبیعی بوده و هستند.

این گفته تا حد زیادی در بارهٔ شعرای عالم و ادیب پښتو و شعرائیکه کمتر سواد داشته ویا بیسواد بوده اند درست است. در گروه اول سخن آفرینِ آفرین سخن گل پاچا الفت و در گروه دوم شاعر مست و ملنگ ملنگ جان را میتوان مثال اعلی خواند. شعر رفیع نیز از تکلف آزاد است وطبع او را می شاید خداداد قلم داد.

دا وگړي پر کړي خدایه!

عبدالرحمن پژواک

مه/ ۱۹۸۵ واشنگتن

دګنهګارو(!) بې ګنا هو ترمنځ پوله نشته
سره پراته واړه - زاړه ښځې، ځوانان په وینو
څوک په مېړو، څوک په کورو، څوک په زندان کې مړ شول
هم کور په وینو دی، هم لړ ندی زندان په وینو
له یوه سره د سرو په پریکولو سر شول
هم دې خانان په وینو رنګ، هم دې خواران په وینو
دوی کړل کښېنا ستل د وینو تو یو و د پاره
هغه کورو کښې چې له ځایه وو ودان په وینو
څوک یې وژلي په ټوپک څوک د بمو په میټو
څوک په ژوندو ننهل ته رکټو ر په ګورستان په وینو
صرف یې ونکړه په ښځیا د وطن په زویو
کړل یې امیان په وینو رنګ هم ملایان په وینو
د علم او فکر سرمایه یې له وطن. کړه ورکه
چې په خبر بوه وو کړل یې ډوب هغه کسان په وینو
که محصل. متعلم ؤ، که مامور یا استاد
چې ددوی نه شول واړه غرق شول د توپان په وینو
دوی کله اړ شول په لیکوالو، ډاکترانو باندې
ډوب یې کړل ډېر متخصص، انجنیران په وینو

د ګران وطن معنوي پانګه یې له مینځه بیوړه
علم په وینو شو، ادب او ادیبان په وینو
کلي په کلي، ښار په ښار یې وینې وکړلې
دوی سرتر سره ولړل د ښت او دامان په وینو
د روس له پاره یې د خلکو غلامي پیل کړه
د روس په لمسه یې خولم کړل افغانان په وینو
وطن په وینو دی ولل شوی د وحشت له لاسه
د سیاهۍ نه دی ښایي لیک شي دا داستان په وینو
زه برېږم وښیم جهان ته کومه - کومه برخه
دې لړند کړې هر طرف افغانستان په وینو
عزتمنوي چې د کونړ د غمو چیغي واوري
او به سرې شوې دي د سیند د نورستان په وینو
کله وتی شي د کېراړې قتل عام له ذهنه (۹)
د خویندو میندو ورځ ته لړند شول بچیان په وینو
د "شیګل" شګې هم په سرو وینو کښې ولمبېدې
د "نیګلام" ستېلې چې دې ګې کړې باران په وینو
د "ننګرهار" دګلوهار دوینو عکس ښیي
چې یې په پښو کښې رغړېدلي دي زلمیان په وینو

د «الیشنګ»، د «الینګار» سیند ونه سره ښکاریږي
دی لړل شوي سرتر پایه ټول «لغمان» په وینو
په «حصارک» کښې ایسار شوي سره اور ونه دي
په «خوګیاڼیو» کښې تانګونه شول روان په وینو
که «خیرخانه»، که «پای منار»، که «چنداول» د «کابل»
«بالاحصار» یې کړلو سور لکه الوان په وینو
د «لوګر» غرونه لا تر اوسه شاهدي پرې وایي
چې یې ډوب کړي دي د غیرې ماشومان په وینو
که «برکي» و، که «پادخواب»، که د «علم پل» و
ټول وللي وینو دي، هم دی «تنګی واغجان» په وینو
د «څرخ» ګورونه، په څرخي الیکوپټر وران شول
په «بهسود» کښې چا ونه مونده امان په وینو
«تیره» بیا شوه د توپونو په لوخړو باندې
«ګردیز» جنګریز کړه سور په وینو، ګردیزیان په وینو
«سته دستو» په کنډو کښې د سرو و وته
هم کلیوال وو، هم عسکر منصبداران په وینو
«زرملې» خپل یې شهره مله یو ځل له لاسه ورکړل
ځوندي تر یې ولاړل، پاتې، پاتې مشول بې نشان په وینو

شول مړي کوته «سيد خيلو» وزه»، «دوه مانده» کې
په «زيړوک» پريوتل لاشونه، شو «کيان» په وينو
په «سيدکرم» کې په «ځاځيو» کښې ځای پا تې نشو
«منګل» په وينو «خوست» په وينو شول «ځدران» په وينو
هلته شمال ته په «تګاب» کښې تګ د وينو وشو
شپړ د «پنجشير» په وينو رنګ شو «پروان» په وينو
«پلخمري» ده، که «دوشي» دی بچ له وينو نه شول
غاټول د دښتو ځيګرخون شول د «بغلان» په وينو
«تخار» په وينو دی، «فرخار» او «فيض آباد» په وينو
په کان کښې وژړل لالو د «بدخشان» په وينو
«مزار» مزار شو د وطن د وطند وستو بچو
«ميمنه» مينه شوه د وينو «سمنګان» په وينو
د «صلح کل» «بودا» لمن يې هم په وينو سره کړه
چې يې خپور پولې پټې کړل د «باميان» په وينو
د «اميربند» د وينو رنډ شو، پنجاب سور ښکارېږي
«شهرستان» ربنی، لړل شوی «مالستان» په وينو
حيات د خلکو په «خوات» کښې په سرو وينو رنګ شو
«بهسود» په وينو دي لړلي، دی ميدان په وينو

«ونخی» ، «کړ» شنيز» ، کړ «جغتو» دی وينو و لمبول
«خروار» په وينو شو ، رنګين شو «زنخان» په وينو
هغه «غزنين» چې ما ليدلی ؤ اوس هغه نه دی
بوی د سرو وينو تری راځي رنګ دی ګلان په وينو
«ناور» په وينو دی «واغز» دی سرو لمبو وهلی
«رباط» ، «تاسنګ» او د «شلګر» دی هر مکان په وينو
په «قره باغ» او په «مقر» بمونه و اورېدل
دښتي او غرونه لمبېدلي د «روزګان» په وينو
د «اورګون» زمکه شوه اورګوڼې د لمبو دلاسه
د «وازې خوا» د «کټواز» دی هر ميدان په وينو
«شينکی» شوه سره ، «دروازګی» سره «سورغر» شو سور په وينو
ښکته او پورته ډوب شو «توچي» «زابلستان» په وينو
«ارغنداب» وينې شو «کرز» وينې شا او خوا يې وينې
«بولدک» په وينو ، هم يې ډوب کړ «ارغسان» په وينو
په «لښکرګاه» کښي د لښکرو وينې وبهېدې
«موسی کلا» په وينو سره شوه «هلمند» وران په وينو
په «فراه رود» د وينو رود د افغانانو ګډ شو
«شينډنډ» د وينو ډنډ شو «لژند» شو «سيستان» په وينو

«هرات» په يوه ورځ کښې دېرش زره بچي مړه وليدل
هم د «بادغيس» ، «مرغاب» په وينو دی «لامان» په وينو
وطن په وينو باندې رنګ شو کلی - کلی رنګ شو
خو ماړه نه دي تر آخره ظالمان په وينو
د وينو - وينو په لار ولاړم د وطن په غېږ کښې
سمه په وينو، غر په وينو، ګلستان په وينو
ملي ماتم يې د افغان اولس په خلکو راووست
خوله مې د وينو خوند کوي ، سور مې بيان په وينو
د کونډو، رنډو، خوينډو، ميندو چيغې هره خوا دي
چې يې وحشيانو لوغړولي دي خپلوان په وينو
تاريخ مې پاڼه - پاڼه واړاوه په وينو پسې
لکه د دوی د بل چا لاس نه دي داشان په وينو
د ټول تاريخ د وبسو پاڼې يې په وينو ولـــې
تر دوی شول وروسته هلاکو او چنګېزخان په وينو
عَبْدُالرَّحمٰن له ککريو څو ځلي جوړ کړل
دوی سراسر ورنګاوه هر يو مکان په وينو
خو ناحق وينې يې لاس ناخلي له لمنې څخه
ځکه لړلي وې ټول عمر قصابان په وينو

د باد روان له شرمه دك مرك به هېر نشي د چپا
هغه ترکۍ چې يې سور وُ هر «پرمان» په وينـو
امين دلوی خاين په ترګـه ورك شو، سپك شو پسې
روسي بادار يې کړلو مور بنه د خپل ځان په وينو
کارغل به هم د پـر ژر د وينو په بهير د وبيږي
چې له اوله وُ وطن ته را روان په وينـــو
داد افغان وينې به نشي بې بدله پـــاتـــې
ژر دي خولم بکړي خپل واره دښمنان په وينو

۱۳۵۸/۱۰/۲۳

کابل

# عاشوره

رادبره شوه دکال ددرانه غم ورځ
هغه ورځ چې ياده ده د لوی ماتم ورځ
شوه حرامه آرامي په اهـــل بيـــتو
سره شـــوه، توره شـــوه له غمه محرم ورځ

٦۲/ ۷/ ۱۵

۱۰ محرم ۱۴۰۵ هـ.ق

# د نور خلي

## د بریالي غازي او سرلوړي شهید

## مولوي شفیع الله په یاد کې

هغه غازي چې یې د توري شپې په تور زړه کښې
د توغندیو د نور کرښې هره خوا ایستلې
د حق رڼا به یې د زړه سترګو ته نور وربا خښنه
رمې ګولۍ یې د هدف په لور رسا ویشتلې

* * *

هغه غازي چې د باطل په سنګرونو باندې
په عقابي غورځنګ په لوړ جرأت بریدونه کول
د دښمن زړه ته یې رسا د توري خرپ رسېده
په خپل وحشي دښمن یې سم - سم ګوزارونه کول

* * *

هغه غازي چې د جهاد ډېوې یې بلې کړلې
د کابل ښار په زړه کښې څرچې ان د ارګ په خوله کښې

په خپل رسا - رسا ګوزاريې بې حسابه ورکـــړل
د دين او خاورې د ښمنان د رسوا مرګ په خوله کښې

* * *

هغه غازي چې د باطل غزونه يې غلي کــــړلو
د حق دلارې د راکښ په لړزوونکـــــو ډزو
د روس د ظلم ، استبداد او د فساد ځـــاله
پرله پسې برېې ويشته په نړوونکـــــو ډزو

* * *

هغه غازي چې هر غازي ورته د ستر ګوتور ؤ
ده ته ؤ يوکه به د تور ، که به د سپين ګـــوندؤ
چا به چې زړه د روس کړ نخښنه د زړه سر ؤ دده
دده نظر کښې يو د کفر بل د دين ګـــونـدؤ

* * *

هغه غازي چې زور ، زارى او زر پـــرې نه چلېدل
د عارضي سولې ، تسليم په لاره تللى نه شـــو
سرلوړى ژوند د ژوندانه عالي هدف ؤ دده
سرې بايللى شو خو چا ته کـــږ مدلى نه شـــو

* * *

هغه غازي چې عقیده او جهاد ژوندۍ ورته
کوه صاف نه یې په صاف زړه جهاد ونه کول
په هر مصاف کښې به پریږو ښکلولې یې پښې
کړل تار او مار یې چې د ښمن به قطار ونه کول

* * *

هغه غازي چې یوه لحظه یې هم آرام نه کاوه
وایي: آرام شو د ژوندون د لوړ مرام په عنبر کښې
شفیع الله ؤ شو شفیع یې الله ولاړ الله ته
شو لو آرام د خپلې توري د نیام په عنبر کښې!

* * *

خو غازي نه مري، شهید نه مري، هغه تل ژوندی شو
ظاهره ښکاري چې زمونږه لوی غازي غلی شو
چې تر قیامته کړي رڼا او تر آسمانه رسي
شفیع الله د دې تخلا نده ښکلي نور څلی شو

* * *

۱۳٦۴/۴/۳

پېښور

د ښاغلي محمد صديق پسرلي ليکنه:

# اوروڼه او ويروڼه

د روان جهاد په دوران کښې که شاعرانو توري ټوپک ته لاس او سينې يې د ملحد دښمن مرميو ته ډال کړې، د قلم خاوندان هم دوهره بې تفاوته نه دي پاتې شوي. په زرګونو شعرونه مقالې او په سلګونو رسالې او کتابونه د جهاد په ارتباط وليکل شول چې يوه لويه برخه ممکن خپره شوې هم وي. د چاپ شويو آثارو په اعتبار دا ويلای شو چې د نن پرون ادبيات به مونږ راتلونکو نمانو کښې په ګوښې تله تلل کيږي لکه څرنګه چې له يوه دې ستومانونکي تاريخي پړاو څخه عملاً تيريږو دغه شان ادبيات هم په بل مرحله کښې دي.

هره دوره ډېر آثار او ادبيات منځ ته راوړي چې ځينې يې د کميت او کيفيت له مخې ډېر غني وي. تر اوسه خو اوسنۍ دوره د کميت په لحاظ ډېره د توجه وړ ده او د اوچت کيفيت له پلوه هم د ګوتو د شمېر آثار په لاس راغلي دي چې يو يې هم دغه د محترم ورور حاجي حبيب الله رفيع صاحب د جلا دي شعرونو مجموعه ده چې د «اوروڼه او ويروڼه» په نوم خپره شوې ده. رفيع صاحب

# بت پرستي

تاپستي کړه، ماسستي کړه، ده چستي کړه
را نه لاندې يې د پلار نيکه هستي کړه
ها دې ياد دي زه د حق په مينه مست وم
اې دين زاهده! تا به بد مستي کړه!
د دارېنو سرخرويي مې شوه په برخه
چې په وينو مې خيشته خپله هستي کړه
که پرون مې سومنات کښې بتان مات کړل
نن مې مانږ د مادې بُت پرستي کړه
چې کلونږ په رنګونو کښې وه پټه
ښږ رسوا مې اوس وحشي کمونستي کړه

۱۳۶۱/۱/۱۵

کابل

# زیری

زه یم شاعر!
زه د وطن شاعر یم
ما د وطن د عشق نغمې ویلې!
ما مې اولس ته ترانې ویلې!
ما ویښول،
ما پاڅول،
ما څخول وګړي!
تل د لوړتیا،
د پرمختیا،
د ودانۍ تیا لپاره!
زما ارزو وه چې زما ملت هوسا شي هوسا!
شي پیخل کور کښې بسیا!
د تمدن له ګرندي یون سره یون وکوي!
ملي پاڅون وکوي!
په ملي هڅه او تکل وطن آباد کاندي!

په مینه - مینه

* * *

خود پردیو ګوډاګیانو یکې شوکه وکړه ،
داړه یې وکړه ،
د داړې له لارې واك د دوی شو ،
دوی خپلواکي په بل واکي ورکړه ،
د بل په واك کښې یې زموږ آزاد ملت ورکړ ،
له هر څه تېر شول ،
خپل تاریخ او خپل کلتور یې پرېښود ،
پر خپلواکۍ مین ملت ته یې په غاړه باندې ،
د پردو ژغ کېښود !
نو زه به شاعر وُم ! د ملت شاعر !
خود نغمواو ترانو په ځای به ساندې وایم !
په خپلواکۍ ، په آزادۍ پسې به ژاړم - ژاړم !
تش په ژړا نه شي ،
اوس وخت د ژړاګانو نه دی ،
دا خپل ملت به یوځل بیا پا څوم ،
بیا هڅوم !

* * *

زه باوري يم !

زما خلك غلامي نه مني ،

د بل تر ژغ لاندې ژوندون نه مني ،

يون كوي

د روڼ تاريخ رڼا او سره لاره ترې نه هېرېږي !

دوی په دې خپل پښتنځ ركلن تاريخ كښې :

لوړې ځالې يې كوز كړې او غريبې ځالې ،

خو بل ته نه دي تسليم شوي ، غلام شوي نه دي !

دوی په خپل دې پښتنځ ركلن تاريخ كښې :

ډېر ير غلګر ، ډېر داړه مار ليدلي ،

د دوی په خاوره بلوسېدلي ، له هر خوا راغلي ،

راغلي دي ، يرغل يې كړی ، بلوسېدلي هم دي ،

خو ياتې شوي نه دي ، ډېر تر ژوندي تللي نه دي ،

چا سر خوړلی ، څوك برايه ن عوندې تپې تښتلي ،

وطن فروشه افغانان يې بېګانه بللي ،

په هماغه لار يې ليږلي ، چې بادار يې تللی ،

ژوند ترې يې نه دي پرېښي !

شاه شجاعان ـ یې ټول په ګور منه لي !

* * *

اوس ـ هم هغه وینه شته لا سره شوې نه ده !
اوس ـ هم هغه مینه شته لا زړه شوې نه ده !
اوس ـ اوس ـ هم شته د وطند وستو افغانانو بچي
نه پرې دي دلته په دې پاک خاوره ،
پردي تېرزن ،
ددوی ځايي ایجنتان
ددوی په روبلو اخیستی شوي داخلي نوکران !

* * *

که باور نه لرئ نو ورشئ نورستان وګورئ !
د کونړ لوټه ـ لوټه ،
کلي ـ کلي
هلته تګاب ، بلخ ، سمنګان وګورئ !
پکتیا ، اورګون ، هرات ، هلمند او بدخشان وګورئ !
ټولو ځوانانو ،
نرو ـ ښځو
او وړو ـ زړو

په نهورتیا او په میړانه ،

سینې سپر کړلې

د توپ ګولو ته ،

د ټوپک ښلیک ته ،

د دوی سرونه ټانکو لاندې کړل ،

خو ټیټ نه شول ،

د بل نوکرۍ ته ، د پردوا مرۍ ته ؛

غاړه یې ورکړه ، خو په غاړه یې قبوله نه کړه

د مسئیتوب کړی ،

غاړه یې خلاصه کړه وطن ته

او ملي تاریخ ته !

دوی قرباني شول د وطن په مقدس جهاد کښې ؛

* * *

زه باوري یم چې دا سرې وینې به رنګ راوړي

د آزادۍ د ناوې لاس به سره کا

افغان ملت به یو ځل بیرته کړي آزاد تنفس ،

په خپل آزاد ،

د میړنو هیواد کښې

نه باوري يم چې دا کيږي

او ډېر ژر کيږي ،

دا د آزادو ميړنو وطن غلام نه پاتېږي!

* * *

زه کړيوځل د آزادۍ سپېڅلې ورځ ووينم !

بيا مې په زړه کښې بل ارمان نشته ،

بيا نو که مرم نو ډېر هوسا به مرم !

په خوشالۍ به مرم ،

زړه خوښې ،

په خندا به مرم !

زه باوري يم چې وطن به آزاديږي زما

خو که زه مړ يم په دې منځ کښې

نو خوږو ملګرو!

تاسو تر هيله کوم ،

خواست کوم ،

غوښتنه کوم !

چې د وطن د آزادۍ په مقدسه ورځ

زما تر قبره څوک راواستوئ !

چې ماتر زېږي د وطن ـــــ د آزادۍ راکړي
زه به په قبرکښې خوشاله شم، خندان به شم
زه به په قبرکښې هوسا شمه، آرام به شم

دا زېږي ـــــ
ماتر دی د ژوند زېری!
د نوي ژوند
او دتل ژوند زېری ـــــ!

۲۳/۱۲/۱۳۵۷
کابل

## د ورشو، ورشو*

چې د ټول جهان نیول یې وو په نیت ـــ کې
ها حریص ترا وس ساحه د پښو شوه تنګه
چې بې سره پکښې هره خوا یې خـــــر وُ
قطعي خرس ته د ورشو، ورشو شوه تنګه

---

* لومړی ورشو د پولینډ د پایتخت «وارسا» او د وهم ورشو د ځم ځای» په معنی ده.

# پخه لار

په وطن چې د وحشت سيلۍ خوره شوه
هرې خواته ويرانه شوه - ويرانه شوه
ورځ وې سپينه، شپه وې توره په دنياکې
خو زمونږه ورځ هم سره او شپه هم سره شوه
آرزوګانې مې د ژوند شوې ځوانيمرګې
د ولې نه ښکارې هرلورته جنازه شوه
کړيوانونه ترلمن پورې بېره شول
د کفن خبره پاتې شوه، زړه شوه
عرش پرې نولې له آسمانه د نور څاڅکې
چې سنګر کښې د شهيد وينه د پوه شوه
او ښکې لاندې کړې د وينو بهيرونو
د غمونو قافله د پره درنه شوه
آزادي به پرې سرلوړې ځي «رفيعه!»
په سرلوړو تګ وچې لار پخه شوه

۱۳۶۹/۱۱/۲۲

# د ځاروي ګوند ترانه

په ژوبڼ کښې خوشالي ده چراغان دی
چې ترمخ يې نابغه خوک قهرمان دی
امبا! امبا! امبا!
هورا! هورا! هورا!
«نور به نه وي استثمار د فرد له فرده
بڼ موپاك كړد انسان د پښولو ګرده»
د غوايه غوبل دل كړی هر انسان دی
په ژوبڼ كښې خوشالي ده چراغان دی
امبا! امبا! امبا!
هورا! هورا! هورا

* * *

«نور قابض زموبڼ ملكري په هرڅه دي
كه غوجلې، كه ځنګلونه، كه وابنه دي
په خپل واك موشروكړي چور تالان دی»
په ژوبڼ كښې خوشالي ده چراغان دی»

یو تکړه لیکوال - ښه محقق او حساس شاعر دی، چې پښتنو کلوي ته يې ضرورت نشته او لنډه به یې د کتاب پاملې سره ولولو. «اورونه او ويرونه» په دوه سوه دوو مخونو کښې په ورو قطع په دې وروستیو ورځو کښې چاپ شوی دی. کتاب د اشعارو د نوعیت په لحاظ پنځه برخې دی: نظمونه، آزاد شعرونه، قصیدې، غزلې او ټوټې.

دده دا اثر هم د دوی د نورو آثارو په څېر خوندور او ارزښتناک دی. ډېر پاخه نظمونه او نازک خیالونه يې په مختلفو قالبونو کښې ځای کړي دي. که يې د «لمر څیره» او د «وینو بهیر» د ښکلي معیار وګڼو نو د «ژوبلې ترانې» او قطعات يې له ډېرو ښو ځنډونو ډک دي او په الفاظو يې هم ښې لوبې ورسره کړې دي.

د کتاب سریزه ډېره خوږه ده، د غوا بې د الې ټوکلي د ناځایي پېښې ښه عکاسي يې کړې ده، یعنې هم مطلب ښه جوت شوی دی، هم د نثر خوږوالی او جمله بندي په ځانګړي ډول او سبک سړی ځانته متوجه کوي.

آزاد نظمونه يې هم تر ډېره حده کامیاب دي، د جهاد مسأله هغه هم په آزاد او نوي شعر د هرچا کار نه دی، د ښاغلی رفیع غوندې تکړه ادیب په کښې خوند او رنګ پیدا کولای شي.

امبا ! امبا ! امبا !

هورا ! هورا ! هورا !

* * *

ای ښاروو ملګرو خوښ شئ ، خوشالیږئ

وېرانونه موتول خپل دي پرې پنډوېږئ !

ګلان خورئ په بوټو وکښې تاوان دی !

په ژوبڼ کښې خوشالي ده چراغان دی

امبا ! امبا ! امبا !

هورا ! هورا ! هورا !

* * *

د خوګانو مشري وېره وېر افتخار دی

د غوایه بغاوت نوی ابتکار دی

د ښارویو نهضت تونده پرمخ روان دی

په ژوبڼ کښې خوشالي ده چراغان دی

امبا ! امبا ! امبا !

هورا ! هورا ! هورا !

۱۳۵۸/۷/۲۳

پېښور

# وينه او مينه

وينه په مينه توئيږي و تر پيدا

په کومه مينه؟

د وطن په مقدسه مينه!

په هغه مينه چې تري پاکه بله مينه نشته

او هغه وينه چې تري صافه بله وينه نشته

دا وينه جوړه د وطن د مور له تيونه ده

دا وينه ويني د چينو له سپينو پيونو ده

دا د وطن د مور له ويني ده

له ميني ده

دا د وطن په لار تو ييږي

زرغونيږي پري،

تازه ګلونه،

سره ګلونه،

د لاله ګلونه،

په پسرلي تازه کوي د وطن د بنستي غرونه

چې د وطن په لار توییږي له دې وینې قربان!

چې د وطن ناموس خوندي کړي له دې میـنې قربان

وینه په مینه تو یـیدو ته پـیدا

په کومه مینه؟

د وطن په مقدسه مینه!

۱۰/۲/۱۳۵۸

وردگ، آبدره

## سالنګ که سالنګ*

۱

«هندوکش» مو له ازله عدوکش دی

چا چې کړې پرې تیرې، تیرې یې شنډ دی

خو روسانو چې یې زړه ته عونډ ورلنډ کـړ

دود یې وخوت ویل: «سالنګ نه دی سالنګ دی»

۲۰/۸/۱۳۶۱

پېښور

---

* دا ټوټه په سالنګ کې د شوروي روسانو د مرګ ژوبلې له ارتباط ویله شویده.

# کمونیستي

خلک قتلول "بشر دوستي" بولي
کور د چا په زور نیول "دوستي" بولي

جنګ او تجاوز ته نوم د "سولې" ږدي
حق پایمالول "حق پرستي" بولي

چور ته، لوټ ته "عدل"، "مساوات" وايي
لوټ تېري "د سولې همزیستي" بولي

روس ته غلامي کول "شرف" ګڼي
لار د آزادۍ نیول "پېښي" بولي

کور په کور نفاق کرل "وحدت" شمېري
حق جهاد د دین په "باندیستي" بولي

فسق، فساد "اخلاق" او باطل "حق" ګڼي
ټولې بشري هستۍ "نیستي" بولي

هر څه یې چې په قاموس کښې وي
ګرانه بس همدا "کمونیستي" بولي

۱۳۶۱/۱۰/۹ پېښور

# د وینو رنګ

په ګلبڼ کښې پاڼې شوې دي ګلونه
پرې راغلي دخزان دي سره بادونه

سرو لمبو دي سره ګلان له منځه وړي
پاتې شوي یې اغزي د باغ په خونه

طبیعي پسرلی سره خزان تالاکړ
ګل ګیډیو ته یې واچول اورونه

د غوایه عوبل هر څه سره دل ول کړل
په وطن وکړل غویو غوایه کارونه

د روسیې د کبنت له پاره یې قلبه کړل
که کورونه وو یا وو ودان ښارونه

ودانۍ یې کړلې ورانې په بمونو
پرې یې کړ کړل د ځوانانو تاند سرونه

څوک یې کړل په ترا کټور ترخاورو لاندې
په چا تېر شول د روسیې درانه ټانکونه

څوک خوراک د ماشینګن څوک د توپو شول
چا لره ګور کړل الوتکو ځیل کـــورونه
نه واړه او نه زاړه ترې په امان شـــول
قتل عام شول: ښځې، ووړکي، زلمي، ځوانونه
څوک هجرت ته شول مجبور له ګران وطنه
په چا ډک شول په وطن کښې زندانونه
زندان څنګه د قصاب قصابخانې د ی
پرې کوي پکښې غوښې لره اولاســونه
په برقي ډنډو وهل دي څوړول دي
په ځړندوني بېلوي ترې نه پوســتونه
درسته ورځ وژل دي، وینې دي، وحشت دی
ځروي یې په ریشمو لکه پســـونه
چې شعور یې وُ، چې درک، چې یې احساس وُ
ځ نه په ګور شول چې ور او ښتل محو نـــه
چې عالم، چې په ځړیوه، چې بادانش وو
پرې انبار یې کړل د خاورو انبـــارونه
چې وطن وربا ندې ګران چې وطندوست وو
د وطن د ښمنو پرېښول میـــړونه

د پردیو زرخرید و نوکــــرانـــو
د وطن په بچـــو وکړل ستمــونــه
خو باور دی چې داوینې به رنګ راوړي
شي پرې تاند به مو باغونه او راغـــونه

۱۳۵۸/۹/۲۳

وردګ، آبدره

## سرونه کرل

خلک په شاړه هم ګلونه کـــري
یار* په ودانه ځمکې بمونه کـــري
ودانې ورانې خلک ژوندي ښخوي
سرښول نه دي، سرونه کـــري

۱۳۵۸/۲/۲۱

کابـــل

* یار د لته دملګري، رفیق، تواریش په معنی دی.

# للـــون

د وحشت لړې له فضاء نه به خوربنږي، ځي بـه!
د ایمان لاس به په باطل باندې بربنږي، ځي به!
د نور د کرښې خنجر ننووت د شپې په زړه کې
نور د تیارو د ړنګو وینه به وچیږي، ځي بـه!
د وصال لمر د غره په څوکو راختونکی سبکاري
د بېلتانه د واورې غرونه اوبه کیږي، ځي به!
زه به له یاره سره ځمه خپل اشنا دیار تـــه
د رقیبانو سره مخونه به توربنږي، ځي بـه!
د بري زړې به زرغون شي د شهید په وینـــو
دا هرزه بوټي په للون له منځه ځیږي، ځي به!

۱۳۶۱/۱۰/۹

پېښور

# د اوطن

دا د افغان وطن دی ،
دا افغانستان وطن دی ،
د تاریخ پاڼې یې زرینې دي ،
په وینو سرې دي او رنګینې دی !

* * *

دا د افغان وطن دی ،
دا د اتلانو کور دی !
دا د وطن په مینه مستو شازلمیانو کور دی
سرونه ږدي په خپل وطن ،
خود ځا پښو کې نه ږدي ،
له افغاني غروره ډک سرونه !
د وطن ننګ کې ،
د ډګر په جنګ کې ،
خوښیږي مرګ ته ،
هیڅ وخت نه خوښوي

د کور په منځ کښې د تلتك مرګونه

* * *

دا د افغان وطن دی ،

دا د عقابانو ځاله ،

دا استعمار قفس ته نه بندي غاړه !

په خپله پاکه او آزاده خاوره ،

کله پرېږدي د بل ناپاك پلونه !

دا استعمار بابنې په ځمکه ولي ،

د دوی ځايي کونګان په خاورو منډي ،

نه پرېږدي ، نه پرېږدي

په خپل دې مقدس وطن کې

د مردارخورو ټپوسانو د وزرو ټپيدل!

* * *

دا د افغان وطن دی ،

دا د مېړنو مېنه ده !

دلته پردي تېری کوونکي تم کېدلی نشي !

که شي پښېمانه هم په تېښته - تېښته ،

سرونه وبهلی نشي ،

د ښاغلی محمد روحاني رڅویا لیکنه:

# اورونه او ویرونه

روان سپیڅلی جهاد هومره چې غمونه او زخمونه لري هومره خوښۍ او بریالیتوبونه لري، هومره چې توري او ډالونه لري، هومره قلم او کتابونه لري. په هیواد کښې د یرغلګرو د اورونو اوروړل او د یوه ملت هستي لوټول او انسان وژل د هر انسان زړه رېږدوي او د دې خونړۍ فاجعې تریخ یاد به د تل له پاره په سرو وینو د تاریخ په تندي پاتې وي. خو هغه غمونه چې تاریخ تل ځنې پرې وړاندې ځي او دنیا بدلوت مومي د افغان ملت تورې هم لا په ځلېدو شوې لراوبر، نر او ښځه، راپاڅېدل او ملي پاڅونونه او غورځنګونه یې پیل او رامنځ ته کړل او په ټول افغانستان کښې یو ستر انقلاب د ښکېلاک خلاصون له پاره دا دی ځنې په وړاندې ځي او ښکېلاک ډار دی چې زمونږ د سپیڅلي ایمان په مرسته به خپل ګران هیواد استقلال بیا تر لاسه کړو.

د افغانستان د ملت بریالیتوبونه یوازې په تورو جبهو او جګړو پورې نه دي ولاړ، بلکي قلمي جهاد، علمي، ادبي او هنري هلې ځلې هم

که په ژوندیو پښو راځي

په مړو پښو بېرته وزي،

ځینې یې بېرته هم په هیڅ شکل وتلی نشي

په تېښته تللی نشي

سرخېل ساتلی نشي

دا د افغان وطن دی،

دا افغانستان وطن دی،

د تاریخ پاڼې یې زرینې دي

په وینو سرې دي او رنګینې دي.

۱۳۵۸/۲/۱۰

وردګ، آبدره

## د شهید وینه

که سینه سینه د کابل سینه

ته چې را لوېږې ترابا سینه

سوات ته غېږ ورکړې خوږې ګلګېږنشې

په یون کښې ساتې د شهید وینه

اټک ۱۳۶۴/۶/۱۲

# څه ونه وايي؟

په ملک د بل حکمراني ده چې څه ونه وايي؟
د سره ښکېلاک خر دواني ده چې څه ونه وايي؟
کړي وطندوست وطنفروش ، انقلابي قلابي
د توتونو پرېماني ده چې څه ونه وايي؟
که خپلواکي غواړې چېټک څه د زندان په لوري
د مېنې مينه زنداني ده چې څه ونه وايي؟
که سر دې ټيټ نه کړ تيښتېږي د برچې په څوکه
سر ايښود ل لويه ځواني ده چې څه ونه وايي؟
د عوه د ټول انسان کوي فکر يې سيمه کې دی
دلته تراوسه ځانځاني ده چې څه ونه وايي؟
د سردارانو امتياز دی او س د دوی ميراث دی
په عيش او نوش زندګاني ده چې څه ونه وايي؟
ماهر درزي تور استعمار ته سره کالي واچول
رنګ دی بدل زړه خاني ده چې څه ونه وايي؟

که تن زندان ته، سرمې دار ته، ځان مې ګور ته درومي
مقابله مې ایماني ده چې څه ونه وایې ؟

۱۳۵۷/۸/۵

کابل، باغ بالامینه

# جبه زار

پلار وطنه «جبهه» څه دی «جبه» ده
د چاپلار وتنه نشې ځنې کړلې
له کابل نه که کا، بل لوري ته هڅه
په تابوت کې مړ «جبې» پورې شي تللی

* * *

پلار وطن جبهې ته ورچې شي سړی
د چاپلار وتن جبې نه نه شي کړی
«سیل هله وي خښتن چې دخره راشي»
بیا ایله «مردار» غونډی تر ځان شي وړی

۱۳۶۱/۹/۱۰

پېښور

# د شمال له خوا شمال دی

د افغان په پاکه خاوره، نوي دوره راخوریږي
د توپونو، د ټانکونو، د ټوپکو، د بمونو
د شمال له خوا شمال دی، راخوځیږي، راتوندیږي
د آزاد ملت په کلیو، په کورونو، په باغونو

* * *

د اتړیان د غلامی دی، دا نویان د بربادی دی
غواړي وران کړي زمونږ کلي، غواړي وران مو کړي کورونه
غواړي وباسي له بېخه، خپلواکی سمسوره ونه
چې ورکړي مو پلرونو دي د وینو بارانونه

* * *

دا د نوي وخت انګریز دی، دا د روس سور استعمار دی
په خوږو کې یې ترخه دي، په پستو کې یې زیږه دي
تر انګریزه خوځل تېز دی، خونیزنګ او رنګ یې بل دی
هغه یې په خوله نشته، چې نیولي یې په زړه دي

* * *

دلستوغي ماران روزي ملتوبزته په کور کښې
تود میدان شي جوړولی ، دېر پیاوړی مداري دی
سرې ريتارې کړي وړپوړې ، کړ وي يې په ميدان کې
بې خبر خلک پرې رانول کړي دا يې راز استعماري دی

* * *

کور ، کالي ، ډوډۍ شعار دی ، وږي خلک پرې دوکه کړي
خولې يې ډکې له اوبو شي ، چې ورګډ يې په اوبو شي
چې لا هوشې دي سره سيند ته ، هرهرڅه ورځې يو سي
دغه وخت چې په ځان پوه شي ، په توبو شي ، په توبو شي

* * *

ن راغلې هدا ورځ ده ، په وطن مو افغانانو
په ميدان د سياست کې خوشې شوي سره ماران دي
ډولکي د روس ته ناڅي ، کله خملي ، کله پا څي
خوروي په ملک کښې زهر ، ډېر بې رحمه دښمنان دي

* * *

بدل کړي يې څپل رنګ دی ، هر يو کار يې د نيرنګ دی
را روان په بزی لار دی داد عصر استعمار دی

←- - - -

په رنګونو غلط نشې، نیرنګونو رسوا کړه
د افغان اتل ملته! بیا دې وار دی - بیا دی وار دی

***

د تاریخ عنبتلیه زویه، بیا په کار ده ستا میړانه
چې ژوندي درنه یونسي، د ښمنان دې خپل سرونه
ستا په وار به ګوزاریږي، ستا په مټو به ختمیږي
استعمار ته په سرور کړه، څو یې سره ګوزارونه

***

باوري یم! باوري یم! آزاد کله غلامیږي
ولاړ شوي، روان شوي پتنګان د آزادۍ دي
افغان کړی بیا قیام دی، نن یې بیا تړلی لام دی
وړاندې کړي یې میدان ته سربازان د آزادۍ دي

***

بیا ډک شوي سنګرونه، بیا په غرونو کې مورچې دي
بیا جګړه ده په ټوپکو، په چړو او په لښتونو
بیا د توپ او د ټانکونو، د بمو مقابله ده
په تبرونو، په لورونو، په ډبرو، په سوکونو

***

بیا را رسي خبر ویښ د ملت د قربانیو
د افغان د میړنوالي، شهامت او د بریو
په ټوپک نیسي توپونه، په دلګي نیسي غونډونه
په تش لاس به ټانک ورخیژي روسان نیسي ترمریو

* * *

بیا سره کړي یې ده زمکه، د دې وخت سره استعمار ته
د «ګوره» په سرنوشت یې اړولي «سره روسان» دي
بیا د سرپورته کولو که خدای کاندي بیرته نه دي
په کاري ګوزار یې ویشتي د لستوڼي سره ماران دي

* * *

له سروښونه تیریږي، په خوښیو، خوشالیو
له وطنه نه تیریږي، په لویشت - لویشت یې بړدي سرونه
چې سمسوره شي، چې شین شي، چې آباد شي، چې زرغون شي
سپیروي پرې د سرو وینو، خوړي سره سیلابونه

* * *

باوري یم، باوري یم، غلامي به ختمیږ و ده
را نژدې اتل ملته! اوس شیبې د خپلواکۍ دي

په څو ورځو به څو شپوکې، نتیجې به را وتـــلو
د غازي د میړنوالي، د شهید د قربانۍ دي

۱۳۵۸/۴/۲۵

وردګ، آبدره

# ستالین او امین

د هر ظالـم خونخوار وینبنتیا ده چې ستالین دی
خوښ سل ځله او س اوښتی تر یې «امین» دی
خلك وژني، کلي سیځي او ښار وران کــړي
د ملت په کور کې جوړ ملي نـــاورین دی

۱۳۵۸/۲/۲۱ کابل

## یو بیت

زما د ژوندانه بې ثباته تلـون کــې
زما د فکر رخته بنه شوې زوړ نه شوې تازه شوې

۱۳۶۵/۶/۱۳

# توقفگاه زمان

اینجا پلچرخیست
زندان بس بزرگ
افسانه ساز قرن
اینجا همینجا
هزارها هزار
انسان این وطن
فرزند این خاک
سرمایهٔ ملی
درخاک وخون چو مرغ نیم بسمل تپیده است!

* * *

اینجا پلچرخیست
زندان بس بزرگ
اینجا کتاب نیست
قلم در قید و بند
رادیو وتلویزیون

بودن بود گناه
تلاش علم وفضل
جرمیست جرم سخت !

* * *

اینجا پلچرخیست !
زندان بس بزرگ !
اینجا زمان نما
آهسته میگردد
آهسته - آهسته !
اینجا ثانیه گرد
اینجا دقیقه گرد
اینجا ساعت نما
یک از دیگر آهسته میگردد .
به پیش نمیرود
گویا که در اینجا توقفگاه زمان است !

کابل، پلچرخی ۱۳۵۸/۱۲/۱۱

ورسره مل دی . دا هغې ځای یوله هغو برياليتوبونو څخه دي چې زموږ د هنر لیکوالو، شاعرانو، ادیبانو او هنرمندانو خپل ګران ملت ته ورپاندې کړې ، خپلو هراړخیزو هڅو ته په پوره حوصلې سره دوام ورکوي او په روان سپېڅلي جهاد کښې پوره ونډه اخلي .

« اوروبنا او ویرونه » هم یوه برياله ونډه ده ، د شعرونو په تړه پورې مجموعه ده ، د تېرو اوو غملړلو کلونو محصول ده . « اوروبنا او ویروبنا » د چا اثر دی ؟

. . . . وایي چې په ۱۹۴۴ کال کښې الماني فاشیستانو پاریس نیولی و ، نومیالی نقاش او انځورګر « پیکاسو » هم په پاریس کښې کار او ژوند کاوه . یو شمېر صاحب منصبان دده نندارتون ته ورتلل او دده د آثارو ننداره یې کوله . « پیکاسو » بر هم هر یوه ته د « ګرانیکا » تابلو ور ښودله ( ګرانیکا د اسپانیې یو ښار دی چې الماني یرغلګرو یې ورانی کړی او له منځه وړی و ) . یوه ورځ د ګزمې یو صاحب منصب نندارتون ته ورغی او د « ګرانیکا » تابلو ته یې پام شو ، نو له پیکاسو څخه یې پوښتنه وکړه : « آیا دا ستا اثر دی ؟ » او پیکاسو ځواب ورکړ : « نه ! دا ستاسو اثر دی ! »

« اوروبنا او ویرونه » هم هغه تابلو ده چې د روسانو د یرغل او ورانکاریو آثار پکښې پراته دي ، د هیواد لوړ شاعر ، ادیب او

# د ننګ تدبیر

لاس مې که خلاص دی خو په ذهن مې زنځیر پروت دی
چې ګران وطن مې د پردو په لاس اسیر پروت دی

له ما نه مه غواړئ خوښي، خندا، هوس خوشالي
چې کور په کور مې د ملت په کورکېنې وير پروت دی

روښن فکران، رښتین فکرانو ټول خواره واره کړل
څوک په مړستون، څوک په زندان، څوک په بونير پروت دی

ملت ویرجن، چاپېر ویرجن، زمکه آسمان ویرجن دي
زما په شعر د ویرجن محیط تاثیر پروت دی

د وطن زویه! په تا وخت د امتحان راغلی
د تا په غاړه د وطن د ننګ تدبیر پروت دی

۱۳۵۷/۱۱/۲۷

کابل

# افغانستان، غوړېدلی؟

که وه ونه، که کلا وه، که انسان
چې د زمکې پرمخ وو شه شي ودان
په ټانکونو، په بمونو یې هوار کړل
ښه یې وغوړاوه ګران افغانستان
د کورو په ځای یې وویشل ګورونه
خوبې شنختي او بې ښنې، بې نښان
د کالو په ځای یې خلاص کړو له کفنه
نې راپرېښوده لمنه، نه ګرېوان
د ډوډۍ په ځای یې وینې راخوراک کړې
کړل ماره زمونږ په غوښو یې لېوان
کړل یې لوڅې - لوڅې کلي، لوڅ کورونه
په لوڅمارېسې خواره شول لوڅماران
کور، کالي، ډوډۍ یې واخیستل له خلکو
په وژنه یې هم اړ نه شول خلقیان

څوک د باندې ، څوک په بند کې تر تیغ تېر شول
شول خواره واره ، خواره - خواره یاران
چې تودې به پرې زمونږ مشاعرې وې
بېل شول هغه شاعران او ادیبان
نه یې لوری ، نه لودن ، نه یې درک شته
شول بې پتې د وطن د پت زلمیان
د وطن دښمنو کړل د ځمکې زېرې
د وطن په مینه مست خیالي ځوانان
تویې شوې دومره وینې په وطن کښې
نه یې اوښکې شي وچلی ، نه باران
د برچې او د نېزې په څوکه باندې
خاینانو غوښتل ځان کړي امینان
د برچو او د نېزو تر څوکو لاندې
د دوی زړه ؤ صادقان کړي خاینان
خبر نه وو چې وخت نشي غولولی
چې خاین او امین بنيي دی زمان
روسیه شول هم ملت ته هم تاریخ ته
په روسیه باندې یې وپلوره ایمان

ددوی زړه ځي چې افغان د روس غلام کړي
روس ته وسپاري آزاد افغانستان
خبر نه وو چې زمري په زنځیر نه دي
په قفس کښې ژوندون نه کړي عقابان
دوی پوه نه وو تل به دا افغانستان وي
په جهان کښې څو ژوندی وي یو افغان
چا چې کړي ده سودا د ملك پلورنې
دي منډلي یې په ګور شاه شجاعان
چې سپك ګوري د وطن د مورلن ته
سپك په ژوند وي هم په مرګ دا حرامیان
دتره کي عوندي مري د لښ له لوري
شي ناولی روح یې باد سره روان
دامین عوندي د سپي په شان مردار شي
د پلیت مړي یې قبر وي ویران
چې اسلاف یې اول سپك او پسې ورك شول
دي اخلاف یې هم په دې لاره روان
دا وطن د ښکېلاکګرو هدیره ده
ژوندي راشي، مړهم نه شي ایستی ځان

د افغان ملت وطن افغانستان دی
دلته ژوند کړای شي رېښتيني افغانان
چې راغلي ببرته نه دي ژوندي تللی
د هر قوي استعمارګر د دې جهان
دا وطن د آزادۍ په خښته روغ دی
دی تول ژوندي غلامۍ نه په امان
آزاد ؤ، آزاد به وي، آزاد به اوسي
آزادي يې ده ليکلې په فرمان

۱۳۵۸/۱۱/۱۷

کابل

## دُردانې

د ماشوم په لاس مې ورکړې دُردانې
ځکه داسې شوې دانې - دانې دانې
چې له شونډو نه يې هيڅ شرلای نشو
نن په ما باندې رشيدکړې زمانې

۱۳۶۲/۱۱/۱۹

پېښور

# مناجات

بیټ نیکه علیه الرحمه یو مناجات ویلی ؤ :

دا وګـړي د هرکړې خـدایه !

لوی خـدا یـه ! لویه خدایه !

خو کله چې په داؤد خانه کښې زموږ هیواد وال د بېکارۍ له لاسه ایران او عربستان ته په مزدورۍ پسې ولاړل ، په عربستان کښې به څورول کېدل، شړل کېدل او سپکېدل او په ایران کښې به کله د قاچاقبر په نامه اعدامېدل او کله به یې نور زجرونه ګالل نو زه دې حالت وځورولم او د بیټ نیکه د مناجات څواب مې په دې ډول ووایه :

[۱]

دا وګړي د هر شول خـدایـه !

لویـه خـدا یـه ! لـویه خدایه !

د خوراك او خښناك په غم کې خواره شوي په عـالـم کـې

له عربو تـرا یـرانه لا لهاند او سـرګـردانـه

د روژې په لمنه ښـــوري    دي بې ستوري او بې سپوږمۍ

لېږدېدلي له خپل ځـــايــه !

لويه خـــدايه ! لويـــه خدايه!

ددوی مټې کوي کمټـــې    ډکـــوي دنورو ښـــټې

ښېري قوت يې درومي    هومــره مـــومي چې بې شرمي

دپردو له خـــوا ځـــوريږي    د مړښت په ځای مړکيږي

ژوند يې غم دی سر تر پـــايــه

لويــه خـــدايه ! لويه خدايه !

د اولس وينه وچيـــږي    دڅو تنـــو جـــام ډکيږي

د کبـــرده زامن هېر شوي    د بنګلو خښـــتن ډېرشوي

هغوی ورځ په ورځ خوارېږي    او دوی سات په سات مړېږي

لوی واکه شـــو رانــمـــا يـــه !

لويـــه خـــدايــه ! لـــويه خدايـــه !

تو له دې نه دي هم تېر شي؟    ددې وږيو شمېر دې ډېر شي؟

وږي تږي دې زيـــاتـــيږي؟    بياله لوږې دې مړه کيږي؟

داسې ژوند ښه دی که مړينه؟    چې مړ ژواندي ژوند کوينه؟

د تاخه ده پـــکې رايـــــــه!

لويه خـــدايـــه ! لـــويه خدايـــه!    کابل ۱۳۵۶/۲/۲۷

خوکله چې د غوایې تر غوېل ویر وسته په ۱۳۵۷ کال کښې په افغانستان سر ه با
را نازله شوه او زموږ مادي، معنوي او بشري هستي یې ونغرېله د خپل تیر مناجات
په ځواب کښې مې دالاندې مناجات ووایه :

[۲]

دا وکړي ورک شول خدایه!
لویه خدایه! لویه خدایه!

سور وحشت پرې رانازل شو — یو د بل د سر قاتل شو
د سر و وینو سیند روان دی — اوردی، وینې دي، افغان دی
هیواد ټول په وینو سور دی — وحشیانه قتل او چور دی
وطن وران شو درد نمایه!
لویه خدایه! لویه خدایه!

لوټماران ورنه راغلي — مال او سر ته یې دي غلي
کور په کور باندې ویرخور دی — د چاپلار مړ د چا ورور دی
هر لور وینې - وینې - وینې — کله شوې دي ترې میینې
هر خوا ډکه له وای وایه
لویه خدایه - لویه خدایه

څوک شهید کړل الوتکو — څوک یې مړه کړل په ټوپکو
په چاپریوتل بمونه — پرې یې بل کړه سره اورونه

ځوک خوراک شول د کوليو    د وحشت د سرو ښ ليو
د چا کور وران شو له ځايه
لويه خدايه! لويه خدايه!

ځوک ژوندي په ځمکه خښ شول    ځوک د ځان په وژله خوښ شول
د چا قطع شول سرونه    د چا غوږ پېښې او لاسونه
ځوک تېکتر کړل خاورو لاندې    ځوک راووتل د باندې
ټول په وير شول سرترپايه
لوير خدايه! لويه خدايه!

ډېرې مېنې وې سپېرې شوې    دوطن هستۍ ايرې شوې
سره کمونو واره تبا کړل    عالمونه يې فنا کړل
ځوک ژوندي ولاړل ځوک مړ شول    افغانان خواره واره شول
له ماره نه ترګدايه
لويه خدايه! لويه خدايه!

دا وګړي وو ډېر شوي    هرې خواته خواره شوي
په خپل ډک کور کښې وو وږي    د اوبو په غاړه تږي
د مرهبت په بدل مړه شول    په عمو باندې ماړه شول
د تا داوه پکښې رايه؟
لويه خدايه! لويه خدايه!

۱۳۶۱/۸/۱۸
پېښور

# درزونه

د حسرتونو په دنیاکې مې عیشونه زیات شول
هومره مې درک زیات شو چې څومره مې دردونه زیات شول

د بېلتون اور مې دزړه خامه حونه ښه پخه کړه
مینه مې هېڅکله شوه چې څومره پرې اورونه زیات شول

د پروا غزیو مې په بڼ کې سر راپورته کړلو
اغزي که پرې شول ورسره زما ګلونه زیات شول

د غلامۍ سره زنځیرونه زیاتي مات درواخله
چې مې په پښوکې په لاسوکې زنځیرونه زیات شول

ښه دي د غوټې پرېکړې لاره یې را وښودله
که مې سوچونه، که فکرونه، که چورتونه زیات شول

نور به دنن کارونه نه بندم د سبا په غاړه
زما درانه - درانه غمونه له پرونه زیات شول

د ناکامۍ خپېړو لارد کامیابۍ پرانسته
د نامېندیو په سبب مې امیدونه زیات شول

لیکوال حبیب الله رفیع دا آثار د خپل لوړ هنرمندانه ذوق په مرسته راټول کړي دي ، د خپل خوږین زړه دردونه او سوي غږ انګازې یې ور سره مل کړې او یوه ښکلې مجموعه چې انسان ته امید ور وبخښي او ډېرې نېږی ، ترې جوړه شوې ده .

دا مجموعه "د دین او د وطن د لارې د سلهاوو زړوسپڅلو شهیدانو په نوم " ورپلنډې شوې . د " اور " او " وېر " داستان تر عنوان لاندې د غوايي د اوومې نېټې ورځ یې پکښې ترسیم کړې ، په دې داستان کښې لوستونکی لاس نیولی د کابل په ښار ګرځوي او د کمونستانو بې رحمي ، ناروا او هېواد پلورونه ټکي په ټکي ورته شمېري . او په پای کښې نېږی ورکوي چې : " زموږ د مېړنی ملت ایمان داسې راکوي چې د ښمن ته به امان ونه کړي . "

دا مجموعه په پنځو برخو ویشله شوې : " لنډوټه " ، " آزاد شعره " ، " قصیدې " ، " غزلې " او " ټوټې " پکښې رانغاړل شوي دي ، دا کتاب د مهاجرت په شرایطو کښې د " امان کتاب " پنځم ټوک دی ، او ښکلی چاپ شوی او د ښاغلی شاه محمود پتنګ خطاطي هم د یادولو وړ ده چې کتاب ته یې خاصه رنګینې ور په برخه کړې ده .

له سرنه تېرو لیونود صف سر لاړی شومه
چې په شلېدلي ګریوانه کې مې درزونه زیات شول

۱۳۵۸/۵/۳۱

پېښور

## عقد

قران چې وویني قرآن نه ویني
چې پیمانه وي بیا پیمان نه ویني
عقیدې نه لري عُقدې يې ډېرې
ځکه د عقد ساتلو ځان نه ویني

۱۳٦۲/۷/۲۷

## د اتفاق صف

نفقه يې چې ده نغښتې په نفاق کښې
چې يې شق او تخصص دی په شقاق کښې
کامیابېږئ به هله غیورو خلکو!
چې ځای ورنه کړئ په صف د اتفاق کښې

۱۳٦۲/۲/۱۰

# زندان

نه يم زندان کښې،
د ځرخي پله په لوى زندان کښې!
زما وطن ترډې زندانه تنګ دى
ځکه په هره خوا کښې جنګ دى جنګ دى
د وطن هر لورى په وينو رنګ دى
هريو افغان له ژونده نه تنګ دى
د آزادۍ د بل ځراغ پتنګ دى
په ډېر اخلاص سرونه ږدي د خپل وطن په لار کښې
د هندوکش غونډۍ ټينګ ناست دى د دښمن پر لار کښې
وطن که تنګ دى د دښمن له پاره هم تنګ دى
په هر طرف د ميړنو غورځنګ دى
د مجاهد سوک کاږه د بم ورکوي
غليم ته نوى - نوى غم ورکوي

* * *

نه يم زندان کښې
د ځرخي پله په لوى زندان کښې

زما وطن ترڅو چې زندانه تنګ دی

خو په هر ګوټ کښې روان ؛

د آزادۍ جنګ دی

په دښمن ځکه تنګه شوې آزادي به راځي

په تودو وینو چې کیږي

او به خوړ هره خوا

په ګران وطن کښې سرخرويي او آبادي به راځي !

۱۳۵۸/۱۲/۲۸

کابل ، د پلچرخي زندان

# جوړه

بریژنف سولې (!) ته جنګ کړ ، دې بې ننګه

خو په جنګ - جنګ کښې د سولې مرغۍ مړه شوه

اوس امید دی چې بیا « سوله » (!) ترې پیدا شي

« اندیرا » له « اندریپف » سره جوړه شوه

۱۳٦۱/۸/۱۲

پېښور

# سیلاني

نیسه ! لاس طبیبه زخم مې ناسور شـو
چې بې تمې شوم ایله مې زړه مسرور شـو

غاټول شین وُ چې راشین شو په بېدیا کښې
خو چې ولې خندل، زما په وینو سور شو

بې له ډاره چې تر داره ددروان یم
اوس شوې پوه چې سکني ورور مې منصور شو

تل چې ګرځم سر وهلی، بر وهلی
د علیم له لاسه ملک راته تنور شـو

د هېواد د لوړ و عروج سیلاني دی
دا رفعت رفیع هاله موند چې مغرور شـو

پېښور: ۱۳۵۸/٦/۱۱

## یوه لنډۍ

ترکیه داسې دې کور وران شه
لکه چې وران دې کړل زمونږ ودان کورونه

۱۳۵۷

# پور

(د وړلنډ بحر شعر)

وطن کور دی وطن ګور دی
وطن پلار دی وطن مور دی
دده ننگ او ناموس دی ژوند ازغور دی
دده یاد دی زړه تکور دی
دده عشق دی ایمان زور دی
په بیلتون کښې یې سور اور دی
بل وطن کښې ژوند پیغور دی
چې وطن نه وي ورک لوری
په وطن پسې مې شور دی
استقلال یې
په ما پور دی

۱۳۶۳/۱۱/۱۰

پېښور

د رحمان بابا په ليکه:

# د سپېدو خط

شپه او ورځ د ژوند لړلي مې په غم دي
جور غمونه مې له غمه سره سم دي

ژوند تېرېږي خوښي نشته، غم را درومي
خوشي واړه، ښادي وبله ضم دي

زړه هېرم د غه چارې د آسمان دي
او که ترېنې مې د لوح او د قلم دي

نور د نوره شپه هم ځان ته رڼا ورځ کړه
زما ورځې هم پوښلې په تورتم دي

د افغان د انغان دود آسمان ته رسي
سرې لمبې وربانده بلي د ستم دي

د وطن سکون، آرام يې دی مات کړی
په هر لوري د بمونو زير و بم دي

په هر کلي، په هر ښار، په هر ديار کې
د افغان ملت وګړي په ماتم دي

چې د وینو ارزاني په وطن وینم
دزړه وینې مې مدام د سترګو نم دی
میرویسي فال د بابا په دیوان ګورم
بیا پردي منګولې خښې مې په چم دي
ها کشور چې ده په شعر معطر غوښت
بدبویه پکې خوره د تانک وبم دي
د سپېډوله سینه خطر داسي ښکاري
چې رابرې نښانې د صبحدم دي
دې واره قبر کښې لوی عالم ویده دی
د رحمان د شعر کوکې په عالم دي

حمل/۱۳٦٤

# بریژنف

یا زوی مړی*، یا پښې مات**، یا چانماری***شول
چې کار په کتلې چا افغانستان نه
بریژنف چې په دې خاوره تېری وکړ
شو زړه چاود ارمان یې یو وړ ګورستان نه

۱۳٦۲/۱۱/۲۲

* تکه چنګېز، ** تکه ګوډ تیمور، *** تکه کرګین، مکناتن او کیوناري

# وینې

وینه په هره څواکښې وینې - وینې
په وینو تکې سرې دي مینې - مینې
بشر دې ترږی د بشر وینـــــو تـه
څښي یې په مینه - مینه، پیینې - پیینې

***

په خولو بشر وایي: بشر غواړي
خو په عمل کښې شور او شر غواړي
سوله، ورورې، برابري وايي
خو په میدان د جنګ شر غواړي

***

بشر دښمنه به څوك څر ګرمــوي؟
بشر دوستان چې سرې لښې بلـــوي
کله کامبوج، کله ویتنام پرې سیځي
یو یمني بل یمني قتـــــلوي

(نیمګړی)

کابل / ۱۳۵۷/۱۲/۸

# انجام

(د ترهکي په مړینه)

د وطن مور مقدسه ده درنه ده
احترام یې احترام د احترام دی

پاکه غیږه یې هم پاکه هم سپیڅلې
د هر چا تر حق یې لوړ د حق مقام دی

په اغزو کښې یې هم ګل غوندې ښکلا ده
په خزان کښې یې هم عیش مستدام دی

د ربنتینې زوی له پاره یې پر پښو کښې
هم خوبنې ده، هم هوس دی، هم آرام دی

سر پرې بندي د نورو پښنه به پرې پرې نه ږدي
د مرګ لوري ته یې هر د تېرې ګام دی

چې ناموس حیا یې ساتي هغه زوی یې
ګرامي دی، په کابل، کړ په باګرام دی

(خو) چې پلو تري یې په سپکه سترګه ګوري
تر بنکې نه سپک دانمك حرام دی

چې خیانت ورسره کړي مخ يې تور ېږي
د وطن خاین په هر وخت کې بد نام دی
چې آبرو او حیثیت يې په بل پلوري
چې د مور په غیږ کښې پروت د بل غلام دی
رسوا کیږي، بدنامېږي، منفور ېږي
انتقام يې انتقام د انتقام دی
لعنتونه له هر لوري پرې ورېږي
چا چې کړی يې د زوېو قتل عام دی
د امین په نوم که وي هم چې خاین وي
د خیانت منزل يې لنډ، آس يې ناکام دی
تره کی غوندې نړېږي په ګولو کښې
ترکولی يې چې چا په بم و بام دی
په ژوند سپک شي بیا په سپکه پسې ورک شي
چې يې مور ته نظر کړی هسې خام دی
مرګ يې سپک وي، پس له مرګه هم سپکېږي
دا خیانت، دا يې آغاز، دا يې انجام دی

۱۳۵۸/۷/۱۸

پېښور، بالاحصار

درنو لوستونکو! دا ښکلې مجموعه د لوستلو ده ، د ساتلو ده او د وېشلو ده ، دا مجموعه ولولئ ، د شاعر د شعري ولولو او حقیقي جذبو سره شریك شئ .

موږ هیله من یو چې د سپېڅلي جهاد پانګې به لا پراخې او وړانګې بر لا خورې کېږي . د ادب مینه وال د ښاغلي حبیب الله رفیع د نورو علمي او ادبي وړانګو درسېدو په تمه شېبې شمېري.

روحاني

نیویارك ۱۹۸۴

# اورپورې شو

بهاره مه راځه ګلونو باندې اورپورې شو
چې پرې راتلې په هغو غرونو باندې اورپورې شو
چې تا به ښکلې کړل په ګلو، مونږ بې سیل کاوه
په هغو ښتو او کڅونو باندې اورپورې شو
د ګل د رنګ د رنګو وینه سرې سیلۍ کړه وچه
هم یې په بوې، هم په رنګونو باندې اورپورې شو
د زیړو ګلو پر ځای سرې لنبې تاویږي پکښې
د پسرلي په چمنونو باندې اورپورې شو
د ښکلو ښې موجونه لوټ کړه د وحشت پوځونو
د ګران وطن تاندو باعونو باندې اورپورې شو
ګلاب، نرګس، مرسل هر یو پخپل ځای وسوځېدل
په رامبیلو، چامبیلونو باندې اورپورې شو
د بنفشې، شبو، ببرې ځانګې لوخړې شولې
په میخکونو، ریحانونو باندې اورپورې شو

چې هم یې بوی، هم یې ښکلا وه، هم مېلې پرې کېدې
د ارغوان ښکلو ښاخونو باندې اور پورې شو
د هیڅ افغان له پاره ځای د آرام پاتې نه دی
هم په فرشې، هم په فرشونو باندې اور پورې شو
چې ګل یې پښې ښکل کړې او دې به تر وربله یووړ
د هغو حورو په پرونو باندې اور پورې شو
چې به یې تومبلې پکې وو د پسرلي ګلونه
په هغو تورو وربلونو باندې اور پورې شو
نه لاله زار دی پاتې شوی نه خارزار پاتې دی
هم په ګلو، هم په خارونو باندې اور پورې شو
د اګران او خوږ جنت نظیر وطن لمبه لمبه شو
هم په سارا، هم په ښارونو باندې اور پورې شو
د اور حلقو کښې دې راګیرې د وطن سیمې مو
چې یې په کلیو، په کورونو باندې اور پورې شو
چې دوی ته کور ؤ او دښمن ترېوخ سنګر ؤ د دوی
هغو کلاؤ او برجونو باندې اور پورې شو
د ننګرهار د ګلوهار پر وټ د شهید په قبر
په شنو سمسورو کونډونو باندې اور پورې شو

د الیشنګ ، د الینګار سیند ونه سره ښکاریږي
چې د لغمان په شنو فصلونو باندې اوریږي شو
د جګدلک د وینو ډک یا قوت لنبه - لنبه شول
د ماهیپر په کږ لیچونو باندې اوریږي شو
په شیوه کیو را شپوه شوې د دښمن لنبکرې
د کمر یو په کمرونو باندې اوریږي شو
باغ بالا باغ د بلا شو افغانانو لره
فرغه یې فروغ کړه په بندونو باندې اوریږي شو
بالاحصار او ښکنې ایسار کابل توته - توته شو
ښکلي پغمان په محلونو باندې اوریږي شو
په استالف کښې لیې - لیې ګولۍ و اوریدې
د شمالي په شنو تاکونو باندې اوریږي شو
شکردره او ګلدره داوردره غوندې شوه
همرېې په غرو ، هم په رغونو باندې اوریږي شو
پروان په زړه باندې پرېمانه ګولۍ وخوړلې
د ګلبهار په بهارونو باندې اوریږي شو
غوربند کښې بندې دي لوخړې د روسي ټانکونو
چې د پنجشیر په زمرګونو باندې اوریږي شو

دګل سرخ د نند ارو لارې اوس شاړې شو لې
د لاله زار په ګلزارونو باندې اور پورې شو
په شهرستان او مالستان کښې ښار او مال تالاشول
بامیان ته ګوره یادګارونو باندې اور پورې شو
میدان ، میدان د خوینې جنګ شو، په سرو وینو رنګ شو
تنګي ، خوات په ښنو باغونو باندې اور پورې شو
لوګر ، ګردیز په اورکښې پټ شول د اورین بموتو
زرمل اورګوڼې اورګونونو باندې اور پورې شو
د آسمان څکو ننبتروونو ځای سکروټنی ولی
چې د پکتیا په ځنګلونو باندې اور پورې شو
د تاریخي غزنې له زړه نه دوړې پورته شو لې
په حصارونو، نیاربتونو باندې اور پورې شو
په قره باغ ، شلګر، مقر بمونه و اوریـــدل
د ښنه زابل په بادامونو باندې اور پورې شو
د کندهار تاکونه لاندې کړل خوینې ټانکـــونو
په ارغنداو او په کرزونو باندې اور پورې شو
په لښکرګاه د سره غلیـــم لښکرې وبلوســـېدې
د زاړه بُست په تاریخونو باندې اور پورې شـــو

سیستان سور اور شو په نیمروز کښې سختي ورځې راغلې
د دلارام په آرامونو باندې اور پورې شو
په ارزګان کښې ارزونګانې خاورې و لاندې کړلې
بې غوره خلکه په غورونو باندې اور پورې شو
فراه فرحت له لاسه ورکړې، د دښمن له لاسه
د استقرار په شینډنډونو باندې اور پورې شو
هرې دهرې قواوې وران کړې په وحشي جنګونو
د مدرسو په منارونو باندې اور پورې شو
د شنه بادغیس پستو لاخولې په نانځ سپېرې نرې
ترشول مات وړاندې په شولونو باندې اور پورې شو
په میمنه کښې يې دامن مينه پرېښبوده
د جوزجانې په يادګارونو باندې اور پورې شو
اُم البلاد د خبیثانو په لاس وسو ځېده
په هغولوړو بړغونو باندې اور پورې شو
په سمنګان کښې د مېړانې يادګارونه وسول
سنګلې تخار او بغلانونو باندې اور پورې شو
په چاردره کښې ماشومان لکه دورو حلال شول
د کندز کليو او کورونو باندې اور پورې شو

چې د واخان د ګکرېه ولي يې د روس پښو کښې ګښېږد
د بدخشان په سرو لالونو باندې اور پورې شو

* * *

چې په سجدې پکښې کېدلې د پاک رب حضور ته
په هغو پاکو محرابونو باندې اور پورې شو

کور ونه وران، اور ونه مړه، تنګې ساړه ـ ساړه شول
د روس لـه لاسه په اورونو باندې اور پورې شو

دېرې مو ولاړې ادېرې شوې ادېرې ايرې شوې
کورونه خو چې په قبرونو باندې اور پورې شو

تنها ژوندي او ژوي نه دي چې سره اور وسيځل
په زيارتونو مزارونو باندې اور پورې شو

چې فرش د ګلو به د توري کېږدې د مخ تر خوړ وځ
په هغو د ښتو دامانونو باندې اور پورې شو

هم د کېږدې او هم د ژړونو مراندې وسوځېدې
د عشق او مينې په تارونو باندې اور پورې شو

د سرو او ښانو کاروانونه به نور چېرې لېږدي؟
چې په کېږدېو، پېشولونو باندې اور پورې شو

←

رمې اوس نشته، په ګلو هم ګولۍ واوریږي
په ایلبندونو، څړځایونو باندې اورپورې شو

چې له مستۍ نه به اوبو پکښې ټوپونه وهل
هغو شپلو، هغو ناوونو باندې اورپورې شو

چې به مېلې وې، ساتېرې به وې، سیلونه به وو
په اخترونو، په جشنونو باندې اورپورې شو

د ژوند لمحه لمحه په سره وحشت لنبه لنبه شوه
په ورځو، شپو، په مهالونو باندې اورپورې شو

چې انتظار به د پردیس لالي کېده ورپکښې
په هغو لارو کندوونو باندې اورپورې شو

لیلا به وزني ټولول، لالی به لوښنګه کړي
چې په لوونو درمندونو باندې اورپورې شو

د خزانونو پاڼې سوې نه دي ایرې ایرې دي
د بهارونو په هارونو باندې اورپورې شو



سهار غوبل د غوایه وشو، روس ما بنام ته راغی
په سهارونو، ما بنامونو باندې اورپورې شو

←

د ثور برج ، د جدي برج په موږ قيامت راوستو
خونه په هسک ، نړ په برجونو باندې اورپورې شو
په شپه بنديز ، په ورځ بنديز ، ژوند په بنديزکښې بند شو
د آزادۍ په ساعتونو باندې اورپورې شـــو
چې د اسلام او د ملي فرهنګ دښمن پرې راغلـــل
په مکتبو او کتابونو باندې اورپورې شـــو
تنکي ځوانان او ماشومان په اورکښې وسوځيدل
په ناسپړلو ارمانونو باندې اورپورې شـــو
دا اوښکې وينې سره ګډې دي خوناب جوړوي
که پر تنکيو کبابونو باندې اورپورې شـــو
چې به رپانده وو د غيرت او د عزت په شمـــال
اوس پر شملو او پلوونو باندې اورپورې شـــو
چې يو يې سرقلم او بل به يې نظر قلم کـړي
په هغو تورو ، قلمونو باندې اورپورې شـــو
د پرون هغې مودنن په اورکښې وسوځيدې
د برېښ تلک پر تکلونو باندې اورپورې شو
انسان يې ناوړي د آسمانې فضاله دوږوه ګــه
د مظلومانو په آهونو باندې اورپورې شـــو

روسیه به ښکه روسیاهي کړي اوس له خلکو پته
چې د افغان په افغانونو باندې اور پورې شو

***

که زما مینه روس کړه ورانه خومزه یې وکړه
چې هر - هر ځای یې په ټینکونو باندې اور پورې شو

د هر خوږمن افغان په زړه کښې خوښي ودویده
چې د دښمن په واحدونو باندې اور پورې شو

د هرې بورې مور د زړه د زخمو خولې ورغلې
چې د لښکرو په سرو بچونو باندې اور پورې شو

شو بلې یې ورانې عصري زور یې تول او بر - او بر شو
په زغورو جهازونو باندې اور پورې شو

د ګران وطن په هره برخه کښې په شور - شور ځله
په قطارونو قطارونو باندې اور پورې شو

په ډېرو سیمو کښې د روس قوي - قوي پوځونه
صفاً صفا شول، په صفونو باندې اور پورې شو

ایمان ترګوره چې توپک په ټانک کښې لاره کوي
په پولادینو مقتلونو باندې اور پورې شو

په کم نظر یې چې کتلي وو عنیون افغان تـــه
د سره دښمن په سرو خوبونو باندې اورپورې شو
چې د جنګ اور ته له روسیې نه پکې تېل رادرومي
په هر-هر ځای په دې تېټکونو باندې اورپورې شو
چې یې د سولې د کوترې کوڅو وســـوځــول
الیکوپټرو په ځرخونو باندې اورپورې شـــو
هغه سالنګ کښې چې یې جوړ کړ د تېرې له پاره
د روس په سرو وحشي پوځونو باندې اورپورې شو
دارالامان دښمن ته ځای د امن نه ورکوي
پکښې د روس پر میخ‌ښینو باندې اورپورې شو
چې د اوربل په قومانده یې راډیو سـتېې کـړله
د سره تره کي په هډوبو باندې اورپورې شـــو
چې استخمار کړ روس، خپل باریې پرې ترځاپریوو
د خره امین په خرو مغزونو باندې اورپورې شو
دوی کم نسکور زمونږ سرلوړه د آزادی بیرغ کړ
د خلق، پرچم په پرچمونو باندې اورپورې شـــو
انسان دوستي مې یې اوس تول جهان تـه وښــودلــه
د روس په تشو سرو لفظونو باندې اورپورې شو

د ښاغلي شهرت ننګيال ليکنه

# "سکروټې" "اورونه" "شول او" "ويرونه"

کومې « سکروټې چې له نن نه ۱۸ کاله د محمد رفيع صاحب هغه وخت چې د خلق منډوړ ګوند د وړکا په بد مسنۍ کښې د کمونيزم بې سراو تاله "ساز" نه نخا پيل کړې وه بلې کړې وې نن اورونه ګرځيدلي چې لمبې يې له تېرو اتو کلونو را هيسې په غرغرو دي .

هو سکروټې د رفيع صاحب لومړنۍ چاپي اثر او شعري مجموعه ده چې د لومړي ځل له پاره يې د مطبوعاتو پر آسمان د هوښيار او د خطر زنګ په توګه هغه وخت د تېرو ځان باېللو رژيمونو د بې بصيرته او بې غوره په تياره کښې د روسي کمونيزم استعماري فعاليت د « خلق » په نامه پيل شو ، وځلولې او بيا يې له پنځوس څوګو زيات ځانګړې آثار او په سوونو مقالې وليکلې او خپرې کړې .

او بيا چې هيواد د کمونيزم برېښو او وحشي روسانو وران کړ ، وې سوځاوه او ښکلې ښنې درې يې تانګونو عزيل او بمونو وسوځولې " سکروټې " بيا ژبغراند شوې ، د مقاومت اورونه شول او ورسره ويرونه هم .

که زما کوريږي کړاېره مسکو هم ولړزېده
په کرېملين کښې په تختونو باندې اورپورې شو

***

چې د پولينډ کارګر څوټک دی را اخيستی پسې
د روس په لور او څوټکونو باندې اورپورې شو
چين هم اوس پوه شو چې مارکسيزم دی ترياق د خلکو
چې د مارکسيزم کتابونو باندې اورپورې شو
د کمونيزم شرارت د نيا لمبه - لمبه کړه
په کمبوديا او ويتنامونو باندې اورپورې شو
چې دي پيلي يو د بل تر څنګ چمتو ولاړ دي
په ناپيلو هيوادونو باندې اورپورې شو
لوی قدرتونه يو و بل وته په شا تېږوي
ايران ، عراق په اولسونو باندې اورپورې شو
په مونږ قيامت دی خو د زړو دوک به موږ وړي هله
که په دې لويو قدرتونو باندې اورپورې شو
چې زور حق بولي د ويتو حق د هغوی دی پکښې
نور په ملکو ملتونو باندې اورپورې شو

خبرې کېږي نتيجه يې د جنګ او ر کړي لاندې
د ژړيوا په مجلسونو باندې اور پورې شو
افغان سوځېږي او فرياد کړي د نيا هيڅ نه وايي
جوړې يې په سترګو او غوږونو باندې اور پورې شو

***

زلمي اتڼ کوي خو ډول ورته د جنګ غږيږي
اوس د ښادۍ په اتڼونو باندې اور پورې شو
يتمې پيغلې دي روانې د سنګر په لوري
چې د غرمې په ګودرونو باندې اور پورې شو
ډوډۍ پخېږي خو د لوږ ځای سنګرته درومي
د مازيګر په تنورونو باندې اور پورې شو
پګښې عکسونه د شهيد د پاکو وينو ښکاري
سهار ماښام په شفقونو باندې اور پورې شو
رفيعه هغه طراوت اوس په کښې نه ښکاريږي
ستا د هجران سوي شعرونو باندې اور پورې شو

۱۳۶۳/۱۲/۲

پېښور، کوزتاکال

# نه ځايېږي

وجود مې له خپګانه په وطن کښې نه ځايېږي
غمونه مې دي دومره چې په تن کښې نه ځايېږي
ګلونه خزان شوي دي، باغونه دي وران شوي
د سره خزان باد و نه په ګلشن کښې نه ځايېږي
راغلی سور وحشت دی، په اولس مې سور ساعت ګ
سرې وينې د ظلمو په سپين کفن کښې نه ځايېږي
رود ونه دي د وينو په هر لوري چې بهيږي
ځوانان دومره قتليږي چې مدفن کښې نه ځايېږي
ودانې ورانې شوې دي هر لور په وير لړلې
ويرونه د وطن د مور لمن کښې نه ځايېږي
وطن سوری – سوری دی د روسيو په سو ګوليو
تر دې لې زيات زخمونه په بدن کښې نه ځايېږي
خلقيانو داسې ظلم په وطن کښې کړ بر پا
شرميږي پرې تاريخ نې لري ساری سرتر پا

۱۳۵۸/۹/۱۸

پېښور

# ردیف بندگی

زندگی:
رادمردان
از همان اول
بازندان بسته است؛

* * *

زندگی
بردگان روسیه
تا به آخر
در ردیف بندگیست!

۸/۴/۱۳۵۸

کابل، زندان پلچرخی

## یو بیت

زما د ژوندانه په بڼ ښاپېرۍ تلون کښي
زما د فکر رخته بنه شوي زوړ نه شوي تازه شوي

۱۳/۶/۱۳۶۵

# نوی دام

د سره استعمار نوی دام د ذهن غولول دي
څو کسه کړي د ځان نوم د ملت ورباندې کېږدي
د سره لښکر په مرسته په تخت کښېنوي مغرور
د پاسه نوم د خلکو حکومت ورباندې کېږدي
قومونه سره جنګوي، پلار، زوی سره په جنګ کړي
په ډېره بې شرمۍ نوم د وحدت ورباندې کېږدي
بمونه اوروي په خلکو ظلم چلوي
اورونه بلوي نوم د خدمت ورباندې کېږدي
آرامه آرامي وي په یو ملک کښې چې دوی ورشي
جنګونه کړي نوم سوله، امنیت ورباندې کېږدي
کوي قتل عامونه د وګړو د ملت
خو نوم په سپین سترګۍ د عدالت ورباندې کېږدي
تړي واخلي خپلواکي او آزادي او خپل اختیار
په خوله نوم د ملت د حاکمیت ورباندې کېږدي

د ځان په ګټه چوری کړي کلتور او اقتصاد
خو نوم د ورور ولۍ او محبت وربانديٰ کېږدي
غلام کړي بل ملت په ډېرو لوموکښې یې ښکېل کړي
د خولې په تش ویل نوم حریت وربانديٰ کېږدي
نازله په ملت کړي سره وحشي ډیکتاتوري
خو نوم اولسواکي، ملي قدرت وربانديٰ کېږدي
که داوي سوسیالیزم ترقي او امنیت
هر څوک به لوی پښه ونه د لعنت وربانديٰ کېږدي

جدی / ۱۳۵۸

وردګ، آبدره

# د مسافر جنازه

له سوي سري دښتې له خالو له زړو خیمو نه
د څوکسانو په اوږو د مسافر جنازه
له هیلوډک زړه د بې پایه دښتې زړه ترولاړه
د یوه بې کوره، یوه بې کوره مهاجر جنازه

۱۹ / ۷ / ۱۳۶۱، پېښور، کچه ګړۍ

# سپېدې

سپېدې دي خوښې زما زېری د سحر لري
په خره پره کښې تر شا څيره د لمر لري
سپېدې دي خوښې زمـــــا

* * *

تياره څيري په ځای یې هره خوا رڼا راوړي
د باطل مراندې پرې کوي د حق خنجر لـري
سپېدې دي خوښې زمـــــا

* * *

د تاندو هيلو غوټۍ خوږين زړګوټي نه پرېږدي
د سروګلونو په خندلو کښې اثر لـــــري
سپېدې دي خوښې زمـــــا

۱۳۵۷/۹/۸

کابل

# د باغ

باغ زاغ ته حواله شو له دې باغ نه والوتم
بلبل مین په ګل وم خوله زاغ نه والوتم

زما او د لاله د زړه داغونه سره یو وو
زاغ تن ور سره یو چې کړ له داغ نه والوتم

خطر د تن د پوست وکنه څوړ نه وم الوته
له باغ نه کله تلم له د باغ نه والوتم

ارزو مې وه چې بیا - بیا د خپل ځان سولو ته خېژم
پتنګ غوندې په سوی له څراغ نه والوتم

لوړ سر مې ټیټ همتو ته هېڅ شان ټیټیدی نه شو
په لوړو غرونو سر شوم له «برباغ» نه والوتم

عقاب یم دام کښې نه نښلي دانه دې بل ته کېږدې
لوړ الوت یم له باغ نه کړه له زاغ نه والوتم

۱۶/۲/۱۳۵۹

# بل جهان

چې آسمان یې پټ په وریځو
توري لړې پرې خورې دي
نې د بخت ستورې ښکارېږي
نه یې "تلې" ،
نه "نغري" نشته
او نه یې "کټ د بوډۍ" پروت دی
نه "پرېوونې" یې ځلېږي !

* * *

خو:
د اوړي سوځند لمر یې
د قیامت دوړځې لمر دی
ټول مخونږې ښکاره دي
د خېمو له زړه نه لوېږي
او:
د ژمي سوځند باد یې

زمهریر دی !

زمهریر دی !

چې چلیږي

له هډوکو هم تیریږي

دا دنیا د مهاجر ده

دا جهان د اواره دی !

۱۳۶۴/۳/۶

پېښور

## مُجاهد مهاجر

اولسونه دېر بنکېل شوي، پرې راغلي بنکېلاکګر دي
لا تر ننه مهاجر دي، مهاجر دي له خپل ځایه
خو پر تا چې دا ورځ راغله، مجاهد شوې مهاجر شوې
مجاهد شوې مهاجره! ستا برې به وي تر پایه!

۱۳۶۱/۲/۱۲

پېښور

هو! حساس شاعر نه یوازې د ټولنې عیني او ذهني زېږنده شرایطو او چاپېریال نه الهام اخلي او انځوروي یې بلکه وړاندې او وروسته هم له ټولو نظر ګوري «تېر یادونه» هېرېدو ته نه پرېږدي او د راتلونکي اټکل کوي او تا بیا..

رفیع صاحب د خپلې اوږدې ځلاندې ادبي او مطبوعاتي سابقې په لړ کښې د فولکلور، ادب، تاریخ څېړنې، کتاب ښودنې او د ادب پر تحقیقي او تخلیقي ډېرو برخو کار کړی، شکلي او رنګارنګ ګلان ټول کړي دي چې د هېواد ادبي، تاریخي، او تحقیقي خپرونې، جراید، ورځپاڼې، مجلې کالنۍ پرې ډکې دي او ګواه.

خو د ښاغلي رفیع په جهادي لیکنو، څېړنو، ټوټو او اشعارو کښې چې کوم سوز، کوم خوند او کوم کیف پروت دی هغه د جهاد د وږمې پراخه جبهې پوخ سنګر ګڼلی شي او پیاوړی مورچل. او له دغه جبهې او دغه سنګر څخه د دین او وطن د دښمنانو ډېر کاري ګوزارونه خوړلي او لا خوري به یې.

«اوږونه او ویرونه» د محترم رفیع د جهادي اشعارو ښکلې ګېډۍ ده چې د «تصویر»، «انجام»، «زندان»، «د وینو بهیر»، «د شمال له خواشمال دی» له ښایسته او زړه وړونکو ګلانو نه جوړه شوې ده. دغه ګېډۍ د شعر د هغې څانګې لکه آزاد شعر

# زما قاتله!

ارته د نیا د اور تبه شوله زما د پاره
له تحمل نه یم وتلی د دنیا د پاره

اوس راهنکاره شوه ملیونونه ککړې په کار دي
ستا د خیالي جنت ددې خیالي بنا د پاره

دا ستا رژیم دی چې ژرندونکړې دانسان پرېنو
زه به ژوندځار کړم دانسان داعتلا د پاره

زما قاتله اما چې نن د بلا په لاسو وژنې
ښکارېږې ستا لاس بې هم ترلې د سبا د پاره

خبر دی که سرمې ترکټور تر ځمکه لاندې کړلو
د تهکار نه یې بې میوه ورکې هرچا د پاره

زه که فنا هم شم بقامې په فنا کښې وینم
ځکه فنا به وي زما ملې بقا د پاره

د وحشي شپې توره سینه کښې چې بلکه غوندې شي
ما ترد وېاړ چې شم بخرې دې رېښا د پاره

زما «سواد» دی په «ختیځ» کښې پرې رڼا برا شي
تر تولو وړاندې پرې لمر څېره د «سبا» برا شي

۲/۸/۱۳۶۰

کابل قلعهٔ فتح الله

## د ملت لښکر

سرې پسرلي سور راته ښکاريږي
د لاله داغ يې ناسور راته ښکاريږي
خونړی سيلاب راتلونکی په وطن دی
د ملت لښکر مخسور راته ښکاريږي

کابل / ۲۲ / ۲ / ۱۳۵۸

## غلامي

ديو چې توري کوډ تا په ښه راغـــــــی
انقلاب يې د ظلمو په ويو ســـــور دی
د افغان د ميړني ملت په تن ـــــــ يې
لګولي غلامي زخم ناســــــور دی

۲۲/۲/۱۳۵۸/کابل

# د محبوب غېږ

ساقي پاڅه پياله راکړه　　ماله ځان څخه جلا کړه
دا خپل ځان راځنې هېر کړه　　سر سبندو ترې سر تېر کړه
بڼې مې مينه لېونۍ کړه　　بڼې مې مينه سپېلنۍ کړه
چې ننه ور ودانګم دار ته　　چې ځان واچوم انګار ته
چې قربان کړم خپله وينه　　پرې تر لاسه کړمه مينه
چې منصور د خپل دلدار شم　　يار ته ور د دار په لار شم
چې سر لوړې شم مجنون ته　　مؤمن خان غونډې پښتون ته
چې رښتينى يو عاشق شم　　چې په مينه کښې صادق شم
چې د مينې مېنتوب کښې　　چې د مينې لېونتوب کښې؛
تېر تر ځان شم، تېر تر سر شم
د محبوب غېږې ته ور شم

۱۳۵۸/۷/۱۰

پېښور

# غزل

وي ورې - ورې اشنا ترې ستړې جوړوي
ځکه هره ورځ راته خبرې جوړوي
دا د ګرېوانه صدف مې ځکه خوله سپړلی دی
عشق زما له او ښکو ملغلرې جوړوي
ښکاري چې د سرو سرو شونډو تېر به جوړې پرې
بیا غازیان مصروف ښکاري سنګرې جوړوي
ګوره په ټوپک راګوزار نه ږي ایمان وګوره
روس که الوتکې نغوږې جوړوي
پوه نه دی چې سالنګ د سرو لښکرو د مرګ کنده ده
بیا هم لا نادان ګوره لښکرې جوړوي
داد شرق او غرب ښکېلاک مجرم د انسانانو دی
تښتي نور آسمان پر لوړ ونړې جوړوي
څو به په ټنګ پسې ځي را شه له شاعر کره
ګوره له الفاظو نه سنګرې جوړوي

۱۳۶۳/۱۱/۲۲

پېښور

# ملي ماتم

کله چې زه پرچمیانو د ۱۳۵۸ کال د کب په دریمه نېټه د لارې له سره ونیولم او زندان ته یې واچولم زما په تن کښې زما هغه تورې جامې وې چې د کمونیزم د یو نیم کلنې زورواکۍ په دوره کښې یې زما د غم او وير د ډېرو ترخو لحظو په وخت کښې ملګرې راسره کړې وه او نن مې هم په تن کښې وې، دا پارکی همدې جامو ته وېل شو:

زما جامو!

ای زما تورو!

ای د غم جامو!

تاسې ملګرې یې مدام زما د ځان جامو!

هم د سفر، هم د حضر، هم د زندان جامو!

تاسو زما د زړه د غم ښکارندوې کوئ !

تاسو د لوی ملي ماتم ښکارندوې کوئ!

زما جامو!

ای زما تورو!

اې د غم جامو!

۱۳۵۸/۱۲/۶

کابل د څرخي پله زندان

# وطن پلوري

د وطن د څرخونکو مرګ روا دی!
که پلورلی یې په "روبل" که په "ډالر" دی
د افغان په پاک وطن کښې یې ځای نشته
که د سره دی، که د تور ښکېلاک لښکر دی

# تکل

شوم سرګردانه خوله تانه رو ګردانه نه شوم
خوښه جانانه ستا په عشق کښې بې ایمانه نه شوم
تکل مې وکړ د منزل په لور د سر په بیه
ستومانه ډېر شوم، خو ښې دا ده چې پښېمانه شوم

پېښور: ۱/۶/ ۱۳۵۸

# راز

که د خولې نښې کړای د زړونو لارې مه بندوه!
ګرانه! لا لیه د رازونو لارې مه بندوه!
نن د وختونو مجبوري که دیوالونه جوړ کړل
د مستقبل د امیدونو لارې مه بندوه!
که ما او تا ته شولې شاړې خبرې شاړې دي وي
خو دې بچو ته د پلرونو لارې مه بندوه!
زما د زړه درمل په تا د تا په ما کېدای شي
خوښي دې ستا وي د دردونو لارې مه بندوه!
پرون هېر نکړې، سبا خوار نکړې د نن د پاره
ها تېرې شوې د عمرونو لارې مه بندوه!
که د ورورۍ د شعور سترګې دې په روبلو بڼي
د لاشعور دې د شعرونو لارې مه بندوه!

۱۳۶۱/۷/۸

# لوړ سرونه

ورك شوئ، بې کوره شوئ، بې کوره هم شوئ!
د لوی سفاك، جاني خونړيز د لاســــــه!
په پاکو وينو موخړوب شــــو وطن
د شلم قرن د چنګيز د لاســــــه!
کلي، ښارونه مو داور لنبه شـــــول
د نوی عصر د انګريز د لاســــــه!

* * *

ای د وطن خورو وروو زامنو!
څوك په شپلو څوك پرد ښتو نو مړه شوئ!
د چا په سر درانه ټانکونه تېر شول
څوك په برچو څوك په بموښو مړه شوئ!
د چا سينه د ماشينګن موخه شوه
څوك په درنو - درنو توپونو مړه شوئ!
څوك په زندان کښې قصابي شوئ وروڼو
په کوتکونو، په برقونو مړه شـــوئ!

څوک د اعدام په تخته وختلل

په ستمونو په ظلمونو مړه شوي!

د دوزخي ژوند نه وحشت مو ولید

په تکلیفونو، عذابونو مړه شوي!

څوک یې ژوندي په ټراکتور رخبن کړي

د ظالمانو په لاسونو مړه شوي!

سرونه ور موکړل خو تیټ مو نکړل

د خبیثانو، رذیلانو پښو ته!

ددې وطن د دښمنانو پښو ته!

۱۳۵۸/۱۰/۸

ورداګ، آبدره

## یو تصویر

دوران کوډ په وره کښې ناسته ده حیرانه

«خواره» «شتنه» او «کوډ» یې تول له منځه تللي

د «بورږه»، «کالي» او «کوډ» دعوه دارانو

په روسي بمونو دي ورته سیځلي

۱۳۵۸/٦/۲۱

# د مور غېږ

ماشوم چې له مور بېل شي د هر چا څپېړې خوري
بې وارې وار په وار له هرې خوا څپېړې خوري
څا پېړ وي ورته څوره، چې په هر لوري يې مخ شي
که خپل وي که پردي ترې په بيا - بيا څپېړې خوري
ګلونه د دنيا ورته تېره - تېره اغزي شي
د ګل په شان مخ يې د دنيا څپېړې خوري
د مور په ودان کور به يې چې ټول عمر راټول وو
د دې ټولې له لاسه د جفا څپېړې خوري
سپين ملر وي، سپين سباوي خوشا پېړې يې پرې تورې کړې
"سبا" ترې وتې هيله يې "بېګا" څپېړې خوري
څومور وي ته هغه د مور د غېږې آرزو نه مري
تېر پېړي به د اوس وخت د نن سبا څپېړې خوري

۱۳۶۱/۱۲/۲۱

پېښور

نظم ، غزل ، قطعو او قصیدو له رنګینو ګلانو ترکیب موندلی دی، او بیا دد ې ګیلۍ نه هر یو ګل: « تصویر » ، « انجام » ، « زندان » ، « د وینو بهیر » ، « د شمال له خوا شمال دی » بیل-بیل په ځانګړې توګه د چاپ یوه ښایسته او موزون لاس ته لویدلي چې دغه شمیر رفیع صاحب په یوه وار شپږ ارځښتمن او معیاري آثار د جهاد مطبوعاتي حوزې ته ورغورځولي دي .

محترم رفیع صاحب چې پر « اوروته او ویروته » کومه عالمانه او دیوه ځانګړي آهنګ لرونکي نثر مقدمه لیکلې ده ، سربیره پر دې چې دیوه نوي ادبي او خوندور نثري سبک لاره یې پرانستلې ده ، یو مستند او ځانګړی تاریخ هم ګڼل شي . او زما پیشنهاد دادی چې ددغه خوابه ادبي نثر مقدمه نوره هم وغځوي ، او د اوروتو ، ویروتو ، وینو او ویرې دغه رښتینې داستان نور هم پسې اوږد کا او ځانګړی تاریخ .

« اوروته او ویروته » ، « تصویر » ، « انجام » ، « د وینو بهیر » ، « زندان » او « د شمال له خوا شمال دی » آثارو کښې د رفیع صاحب مذهبي ټینګه عقیده ، وطن دوستي ، بې آلایشه درونده شخصیت ، ادبي قدرت او د زړه سوز او درد خپله ځان ځرګند وي ، داسې چې بیا د چا د تهمت ، حسد ، ناوړه او ناروا تبلیغاتو په پرده کښې نشي پټیدلی .

بسم الله الرحمن الرحیم

له کوم وخت نه چې په افغانستان کښې د کمونستي وحشت له لاسه داور، وینو ، وېرې او ویر سلسله را نښلېدلې ده ، له هماغه وخته زما د شعر دنیا هم د اورونو او ویرونو په حلقه کښې راګیره شوې او د یوه مظلوم ملت د اسویلو او زګېرویو او په عین حال کښې د یوه مغرور ملت د بهادریو او تکبیرونو چیغې په خپله غېږه کښې رانغاړې ·

څو کاله پخوا ما د جهاد له فرهنګي سنګر نه "اورونه او ویرونه" نشر کړل او خپل غمونه او دردونه مې له خپل غمځپلي او دردمن ملت سره شریک کړل دوی هم په مینه ولورېدل ، د وسله وال سنګر غازیانو هم ونغوړل او ازانګه یې هم راورسېدل ·

ما په " اورونه او ویرونه " باندې د هېواد د لوی مبارز او مجاهد لیکوال او پیاوړي شاعر او ادیب استاد عبدالرحمن " پژواک " نه نظر غوښتی و، دوی په زهیر او ناروغ ځان تکلیف وکاله او ارزښتناکه مقدمه یې پرې ولیکله ، ما غوښتل دا مقدمه د " اورونه او ویرونه " له دوهم چاپ سره خپره کړم څو د " اورونه او ویرونه " نن چاپ وروسته مې د

# بریالی پاڅون

هر افغان وُ پخپل کور خوښ او مسعود
خپل یې ښته ، خپل یې تاوان وُ خپل یې سود
د عادي ژوندون ښتن وو پخپل کور کښې
نزول هم نه وُ که نه یې وُ صعود
بل واکي نه وه ، خپلواک یې خپل وطن وُ
واکداران یې که هر څو وو ننا محمود
د خپل خدای په عبادت یې ملاکښه وه
د بل چا پېښې یې نه ووې په وجود
افتخار او سرلوړي یې وه په برخه
په خپل ژوند په خپل وطن وو ټول خوشنود
په خندو بنو بریدل او پرېخ تلل به
که کوله به یې هڅه د بهبود
خو څو کسه ناخلف پکښې پیدا شول
کړل یې ړنګ د عقیدې پاخه حدود

د اسلام او د افغان لاره یې پرېښوده
روس مردود، لیکن مردود دوی مردود
د شوکت او اقتدار لیونه میني
کړل د زور و په کړیو کښې محدود
خونړۍ غوبل یې جوړ کړ په وطن کښې
ورځ یې توره کړه په شپه کښې په داوُد
د راډیو څخې یې ونیوې په لاس کښې
په روسي ټانک الوتکو شول فرود
د وحشت دوره یې پیل په هیواد کړه
ټول احرار یې په زندان کښې کړل مسدود
ډېر یې مړه کړل په کورو، په زندانو کښې
کړل یې وضع په ژوندو باندې قیود
د روسي ارباب له حکم سره سم یې
د وطن په هره خوا باد کړل سبارود
وسیل یې تور د خپل معبود عبادت پرې
روس زموږ نه دی بادار زموږ نه معبود
خو مؤمن ملت دا ټله شي زغملی
چې روس ومني او پرېږدي رب ودود

یوه خوا ملحد خلقیان د روس بچیان وو
د وحشت یې نه ثغور وو ، نه حدود

الوتکې وې ، بمونه وو ، ټانکونه
هره خوا ړکه په اور وه او په دود

کلي وران ، کورونه وران ، ښارونه ورانشول
په وطن کښې وو خواره وحشي جنود

نامحدود روسان یې راوهستل وطن ته
خو پرې کې یې ښوده نوم د پوځ محدود

داسې ظلم او وحشت یې دلته وکړ
چې نه کړی و فرعون ، نه نمرود

د چنګیز او هلاکو تاریخ یې سپین کړ
کړل تاریخ تورې برې ، هټلر ، یهود

نه په ښځو ، په سپین ږیرو باندې بند شول
نه یې پرېښودل ځوانان ، نه نومولود

قتل عام یې په هر لوري کښې برپا کړ
خرابۍ یې کړې تر حد څنې افزود

هغه بلخ چې د جمشید د جام جمال و
رېبېدل پرې بې رغونه زراندود

ها مزار چې د اسد د خدای مدفن ؤ
رسېدل یې هر طرف ته د فیض عمود
کندهار چې پایتخت د احمد شاه ؤ
ؤ روزلی یې میرویس او محمود
ها غزنین چې د ښارونو د سر تاج ؤ
ؤ پلار زمینې د محمود او د مسعود
ټول یې وران کړل په بمونو په توپونو
د ژوند نښې او آثار یې کړل نابود
خو بل خوا تر افغانان مسلمانان وو
نې الحاد شو لو منلی نه قیود
ؤ سرلوړي ژوند یې کړی په تاریخ کښې
هر دښمن یې ؤ شړلی په سجود
هیڅ تېری یې په وطن نه ؤ زغملی
نې لوړ سر هیڅ نه وو ته ؤ فرود
په تش لاس یې بریالی پاڅون شروع کړ
په قیام یې کړلو مات خمود جمود
په وحشي دښمن یې وکړل گوزارونه
دین یې حفظ کړ په قیمت د خپل وجود

پر داسې مېړنيو سلامونه
تعظيمونه، تکريمونه او درود

۱۳۶۳/۱۲/۱۷

پېښور

# اسير

چې وې ذهن يې آزاد زنداني نه دى
که په پښو کښې يې پښځه منه زنځير دى
چې لاسونه يې آزاد فکر غلام وي
حقيقت کښې دا اسير رښتيا اسير دى

۱۳۶۲/۱۲/۲۷

# پلې نوم

کمونيزم د وحشت او زور مسلک دى
هر يو لوز، هر يو قول يې موهوم دى
مصلحت دى د انسان د قتلولو
خو چې نوم يې پلېنوم دى پلې نوم دى

۱۳۶۳/۹/۱٦

# دزړه غوټۍ

شو پسرلی په هره خوا توکېږي سره ګلونه
پرسته، غر، دن او دیوار بروي خواره ګلونه
په پاڼه - پاڼه کېږي تصویر د شهیدانو ښکاره
چې د وطن په درد بدلې غېږ دې شنه ګلونه
د خاورې مخ به ولې فرش په سرو ګلونو نه وي
ترې لاندې پټ چې دي تر دې ګلونو ښه ګلونه
ستا عظیم قبر ته شهیده یوه د الې ده کنه
د جنت ګلو ته فاني ګلونه نه ښکلونه
چې د غمونو لویې - لویې غوټۍ وسپړېږي
خاونده کله به غوټۍ مې شي د زړه ګلونه

۱۳۶۱/۱۲/۱۳

د اټک پیل

# کربلا ته سلام!

د کربلا دښتې ، په پاکو وینو سرې دښتې
د نازولو اماما نو د اسرې دښتې
تا ته سلام ستا د سینې سرو پرهرو ته سلام
چې ستا په غېږ کښې لوبېدې ها ارادو ته سلام

د کربلا دښتې د کرب او د بلا دورځو
دې ستا سینه کښې د استانو نه د ښاپېرادو رځو
ته په میدان کښې یې د داسې لوی ایمان شاهده
چې باطل وې ورته امان! امان! امان شاهده
ستا په سینه کښې حق د باطل په ضد قدم پورته کړې
د استبداد په مقابل کښې یې علم پورته کړې
عقیدې تېنګې وې د عقیدې ارادې ونکړې
توره یې ښکل کړه خو باطل ته یې سجدې ونه کړې

* * *

د کربلا دښتې! ستا یاد دي هغه نوښت سرونه

له تنه بېل خو شول، خو بېل نه شول څو سرونه

ستا په سینه کښې د ایمان داسې داستان پاتې دی

چې په نړۍ کښې تر ابده جاویدان پاتې دی

د بشریت تاریخ پرې ویاړي، افتخار پرې کوي

د حق د لارې فدایان ګوره تکرار پرې کوي

د تا سرخرو په لاره پالي د خپل سر په وینه

د حق دوني کړي په مینه، او به خوړ پرېښه

* * *

ګروهن افغان د حسیني پاڅون په لاره درومي

دا لار به پالي کړ تر اوره، کړ تر داره درومي

د کربلا دښتې، په پاکو وینو سرې دښتې

د فانو لوا مانو داسرې دښتې

تا ته سلام، ستا د سینې سرو پرهرونو ته سلام

چې ستا په غېږ کښې لوېدې ها ارادو ته سلام

۱۳۶۶/۷/۱۹
د عاشورا ورځ

# لویې کوي

توپان مې بیا په سروګلونو باندې لوبې کوي
پرغوږېدلو بهارونو باندې لوبې کوي
خوږه نادان دی نتیجه یې چې په پام کښې نه ده
په ازموېلو شمشیرونو باندې لوبې کوي
کدوخونه دی د افغان سر دی یې سره نه ځي
سر به یې ځي چې په سرونو باندې لوبې کوي
د یلدا شپه که وي اوږده هم طرراخېژي پسې
تیاره برخو په سحرونو باندې لوبې کوي

۱۳۶۶/۱/۲۲

## د یلدا شپه

په سودا، سودا مې تېره کړه سودا شپه
شوه اوږده را ته تر کال نه د «یلدا» شپه
او رېدل به مې اوس - اوس مې تجربه کړه
په رښتیا تر ټولو شپو اوږده ده دا شپه

۱۳۶۶/۱۰/۱

# پیغام

ای نړیوالو !
نیاو غوښتونکو !
امن خوښو !
سوله دوستو!
نړیوالو واورئ !

* * *

واورئ پیغام !
د یوه مظلوم
خوږمینې
او با ایمانه ملت
ای نړیوالو واورئ!
غوږ ښئ !
د مظلومو خپه شوی پیغام
د انسانیت

لوی څښتن تعالیٰ دې ده ته نور هم توفیق، صحت او اوږد عمر ورپه برخه کاږي چې د خپل مؤمن، مجاهد او ننګیال اولس د جهاد حماسې او کارنامې وکاږي او انځور او د خپلو ادبي او فرهنګي ارزښتناکو خدمتونو لړۍ نوره هم وغځوي.

ومن الله التوفیق

ننګیال

د واقعیت ،

د حقیقت په غوږو

واورئ!

په دقت یې واورئ!

* * *

دلته په زړه کښې د آسیا ،

یو تاریخي ملت دی .

چې د پېړیو په پوړیو کښې روان ژوندلری

له ویاړه ډک ،

له پته ډک

له ننګه ډک ژوندون!

د ه لوږې، تندې دې ګاللې ،

بې کوره زغلې

خو غلامي ته یې د چا غاړه نه ده ایښې

دا یې ګناه ده

په همدې ګناه تېرې پېړۍ شوې

د زړه د پېرو لویو - لویو قوتونو مدام

د استعمار قوي لاسونو مدام

دده د سر د تیټولو ملي ځلې کړې
خوناکام شوې په مړو پښو تړې تللې

* * *

ای نړیوالو واورئ !
غوږ شئ !
کیسه پاتې واورئ !
ددې ملت د سرلوړې کیسه :
زوړ استعمار دلته پخپله راغی
مات چې شو
بیایې د خپلو نوکرانو دلته لښه وکړه
هغوی یې راوستل ، خو پاتې نه شول
مات کړل ملت
ملي تاریخ تریې د سرو زرو پابونه ورکړل
دا پاڼه واوښتنه هم دلته ،
بیا برسېره نه شوه

* * *

سره استعمار کړې سترګې پټې
په دې ټولو پښو

د ورورئه ، سولې ، آزادئه ، بشر دوستئه

د غولوونکو شعارو ترشخلف يې

د تيري توره کړه تيره

ددې ملت د ښکلولو لاره يې جوړه کړله

لومړی يې دلته ايجنټان په روبلو وپيرودل

څو ناخلف يې له ملتبيل کړل

د ښکاري زړك په شان يې ځان ته ښکېل کړل

د کور ، کالي ، دوډئه خوږې غاړې يې ووهلې

بس يو څو وږې پرې غلط شول

خو نور وپوهېدل

ددوی پردئه لوبې يې وليدلې

خو دوی په ډېره بې شرمئه

د خپل باداره په مټو

په رڼا ورځ کښې ، ډېره بې رحمه داړه واچوله

په هماغه ورځ يې په زرګونو افغانان

په وينو ولمبول

په خونړئه کودتا واك ددوی شو.

د روس له پاره يې د خلکو غلامي پيل کړه

خو د ملت ځواك یې ملګری نه شو
ځکه ملت هر څه منل (خو:) غلام کېدلای نه شو؛

* * *

ای نړیوالو وګړو!
غوږ شئ!
کیسه خلاصه نه ده؛
دوی د ملت د ایل کړو او سنبګېلو د پاره
روسي ټانکونه،
الوتکې،
ماشینګڼې
او بمونه راوړل
په بې رحمۍ یې پر تش لاسو خلکو وچلول
د هر ماشومان، ښځې، زاړه، ځوانان یې ووژل پرې
او د پرې خونې یې د روس په وسلو ورانې کړلې
غوښتل یې پټ د وینو څاڅکي کړي په سره جنده کېښې
خو د قصاب د لمن خاپ هم پټېدی شي کله؟

* * *

ای نړیوالو وګړو!

واورئ !

کیسه اوس خوږه شوه،

په سپين میدان کښې د ایمان او د وسلې مقابله توده شوه

یو خوا ؤ روس، د روس ځپیان، قوي وسلې ورسره

ؤ د ټینګونو غرهار، د ماشینګن ټکهار

د الوتکو غورهار

او د بمو کړسهار

را خلاصېدل، راوریدل پر بې دفاعه ملت

بل خوا ملت ؤ تش لاسونه

بس څو نا په ټوپک، کوتك ورسره

خو ټینګ ایمان او اراده یې وه تر ټا ولاړه

مقابله وه د لېد و او د کتو په میدان

ټوپك په ټانك کښې لاره وکړه رانسکورې یې کړ

قوي دښمن داسې ترور شو چې شوکور یې کړ

شوبلې پرتې لکه ترخې منډ تې

په یوه لحظه کښې د لمبو خوراك شوې

پاس پر آسمان شوې الوتکې بنکاره

د ټوپك ډزو پرې ترسې شروکړ

په څو لحظو کښې لکه پېکې بابښې وغورځېدې

څوچې تر ژمکه رسېدې، لمبې یې شوې دودونه

په هره برخه کښې تباه شول دا قوي پوځونه

ملت بری ومونډ په ټولو زغورو قوو

د ایمان نور و،

دافغان غیرت و،

دا د تاریخ د قهرمان غیرت و،

چې هم یې روس، هم یې ددوی نوکران وپرزول

اوس سروهلی، بروهلی په ځان نه پوهېږي

باور دی ژر به محو کېږي

سور استعمار به هم د تور سبکېلاك د قبر خوا کښې

د میړنو په ملك کښې د پر پر بې خوندی خښېږي

او ددې آزاد ملت خپلواك ژوندون به بیا پېلېږي

نوای رښتینو!

واقعبینو!

نړیوالو واورئ

دغه پیغام

دا د بری پیغام

دا دواړه خوځيږي ملت د سوبې کيسه

دا د يوه لوی استعماري قوت د ماتې داستان

دا ټول مظلوم انسان ته ور سوی !

او ور ته وايي چې ملي اراده نه ماتيږي

ملت په ټولو قوتو برېږي !!!

۱۳۵۸/۵/۲

# عمر

پنځه ديرش کاله مې د ژوند تېر شول د لمر په حساب

شپږ ديرش کلونه مې وتلي د قمر په حساب

چې لا ژوندی دی د وطن په سر کښې نه دی تللی

بې شکه سر نه وي به ولې د سر په حساب

۱۴۰۰ هـ، ق د کوچني اختر ورځ (۱۳۵۹)

# د ايمان سوک

د تره کي سر يې وخوړ، د «امين» سر يې اوبر کړ

«برژنف» يې کړ زړه چاودی «اندروپف» زړه يې اوبه کړ

د افغان د ايمان سوک دی، په «باطل» د «حق» گوزار دی

چې «مسکو» يې غمخانه کړه په «بېرک» يې بل وير وکړ

۱۳۶۳/۱۱/۲۲

# لوړې شملې

قدم - قدم کښې سلسلې دي زلزلې دې راځي
زړګیه زار سنا حوصلې دې قافلې دي راځي

د افغان همت پامیر د تیټیدلو نه دی
چې پر هر وخت د دښمنانو پرې حملې دي راځي

د بېرته تلو لاره یې نشته ګورستان ته درځي
زموږ وطن ته د خراسانو سرې ګټلې دي راځي

د وینې تېلو د همت د پوره مې بله ساتیځ
له هرې خوا د توپانونو سلسلې دي راځي

سر لوړې مړینه د اصلي ژوند پیلامه ده اشنا
سرټیټي ژوند، د مړینې نوې مرحلې دي راځي

د ګکرو ځلې دې لوړ شي، لا دې لوړ شي پسې
چې پرې ړپاندې د غیرت لوړې شملې دي راځي

۱۳۶۲/۱/۲۹

# د مجاهدو ماشومانو ترانه

سپیڅلي مسلمان قهرمانان یو د وطن !

قربان یو د وطن !

قربان یو د وطن !

بچیان د لوی افغان یو فدایان یو د وطن !

قربان یو د وطن !

قربان یو د وطن !

* * *

ساتو یې آزادي د خپلو متو په همت !

لرو ملي غیرت !

لرو ملي غیرت !

په لار د قربانۍ باندې روان یو د وطن !

قربان یو د وطن !

قربان یو د وطن !

* * *

چنګېز دی، که انګرېز دی تسلیم شوی زموږ زور ته!

روس هم روان دی ګور ته!

روس هم روان دی ګور ته!

د خدای په کمک بر په هر میدان یو د وطن!

قربان یو د وطـــــن!

قربان یو د وطـــــن!

* * *

د روس ناولې پښې به پرې پرېږدو هېڅکله

سا تو بربې په خپـــله!

سا تو به یې په خپـــله!

زامن د میرویس خان یو او امان یو د وطن!

قربان یو د وطـــــن!

قربان یو د وطـــــن!

* * *

خوشال به اروا د احمد شاه او د روښان کړو!

هر سا به خوشال خان کړو!

هر سا به خوشال خان کړو!

د ښاغلي عبدالباري جهاني وینا :

# منظوم لیک

ما د پښتو د خوږ ژبي شاعر ګران ورور « جهانی » په نوم امریکې ته « اوروونه او ویروونه » ورلیږلي وو او د خط د نه رالیږلو ګیله هم ورسره . او دوی هم مهرباني کړې وه زما لیک ته یې ځواب او زما ګیلې ته یې منظوم غبرګون رالیږلی ؤ . دا غبرګون د « اوروونه او ویروونه » په باب ؤ نو ځکه یې دلته سره لولو :

***

زړه ته را تېره ګیله منم آشنا
ستا له خوږو - خوږو ګیلو ځار ځم
ستا له سپېڅلو اوښکو قربان
ستا له ویرجنو ترانو ځار ځم

ستا د اوروونو او ویروونو بېړۍ
نه سوځولی ، ژړولی یمه
ستا د تودو ویرجنو چیغو آواز
له درانه خوبه پاڅولی یمه .

دا ئن که ما شوهان سبا ځوانان یو د وطـن!

قربان یو د وطـن!

قربان یو د وطـن!

۱۳۶۲/۶/۹

پښین، بازارګی

# د ایمان زور

د افغان د ایمان زور دې دی لیـدلی

"کمونست" به "کم" و "نیست" شي که خدای کړه

د کمون وحشت بر ببرته ځي کـمون ته

له دې وخت به "جم" و "نیست" شي که خدای کړه!

۱۳۶۱/۷/۲۳

## شهیدانو!

میړنیو! قهرمانو! اتـلانـو!

د وطن د پاکې لارې شـهیدانو!

زمونږ هم د خپل وطن په ننګه جنګ دی

ستا سو لاره خوبنه کړې سربازانو

۱۲/۲/۱۳۵۸ وردګ، آبدره، زیری شهیدان

# چېرته ولاړ شم؟

لاس مې تړي وحشي قاتل ته مې په بېرته سپاري
د ټول جهان قضاوت دادی زه نو چېرته ولاړ شم؟
د حق غاصب به مې د حق غوښتو؟، له جرمه تېرېږي
چې د انسان قضاوت دادی؟ زه نو چېرته ولاړ شم؟
د امن خوښو امن او سر له خومې هم ولېږل
امن و امان! قضاوت دادی؟ زه نو چېرته ولاړ شم؟
د عالمي ضمير وجدان مې تجربه هم وکړه
افسوس! ایمان قضاوت دادی زه نو چېرته ولاړ شم؟
تکیه په خدای ده، مې د توري بله لاره نشته
د هر افغان قضاوت دادی زه نو چېرته ولاړ شم!
د خدای مدد به وي، لوی غرونه، سنګرونه به وي
د ټینګ ایمان قضاوت دادی زه نو چېرته ولاړ شم!
افغان د مور غېږه کښې پایي، ځکه وايي: وي به
افغانستان قضاوت دادی! زه نو چېرته ولاړ شم!

۱۳۶۲/۳/۲۹

کوټه، نقیر محمد زوړ

# د تاریخ غبرګون

د ۱۳۵۹ کال د ثور میاشت له روسي وحشي ښکېلاک سره د کابل ښار په واړو ښوونځیو کښې د ځوانانو او پېغلو د روښنفکرۍ پاڅون میاشت وه، دوی په تش لاس او مېړانه په رڼا ورځ د روسانو په ټانکونو راوړتل او له روسي ښکېلاکګرو سره لاس او ګرېوان شول، لاندینۍ کیسه د دې میاشتې د پاڅون یوه تاریخي حماسه ده چې د "آسه مایي" د تاریخي غره په لمنه کښې د "جوی شیر" د ویالې په غاړه پېښه شوې او د تاریخ پر زړه کښې به تل خوندي وي او ما د دې لنډې مثنوي په کالب کښې نظم کړېده.

یوه کیسه ده حماسه ده
د افغاني قهرماني
را روان وُ لوی توپان وُ
د ځوانانو د پېغلانو
پوهنتون وُ په پاڅون وُ

په کابل کښې — سهار مهال کښې
پورته غبرګ — دا یو ځوبړګ
«مړه روسان شه! مړه خلقیان شه!
روس دې دروځي! زموږ له سیمې!
روس دښمن دی! روس میرځمن دی!
روس نه غواړو! روس نه غواړو!
آزادۍ ته! خپلواکۍ ته!
بر رسیږو! ورستینږو!»
په دې چیغو — په دې کریغو
راتلل ښار ته — زرنګار ته
څو هجوم کړي — روس محکوم کړي
دې بهیر ته — «جوی شیر» ته
روس ټانکونه — او پوځونه
ورچمتو کړل — سپي یې توکړل
پر ځوانانو — پر پېغلانو
ورحمله شوه — دربله شوه
د ګولیو — په نلیو
تویېدونه — زلمي نجونه

څو کسانو    څو ځوانانو
کړلې منډې    له دې غونډې
غږ ته تلنه    تښتېدنه
خو یوې ځوانې    قهرمانې
ورته غبرګې    جوړې ځوبګې
"څه کړئ؟ تښتئ!    ځان نه پوښتئ؛
ژوند خپلواک وي!    که بې واک وي-
ژوند ون نه دی!    مرګ ترې ښه دی!"
په دې چیغه    په دې تریغه
دوی په تېښتنه    پرېښوه تېښته
حمله ور شول    سینه سپر شول
مړدکو ته    ټوپکو ته
هېر ترې مرګ شو    تاریخ غبرګ شو
د ملالې    بې مثالې
احترام دی    صد سلام دی
دې میدان ته    دې ایمان ته

د افغانې

قهرمانې    ۱۳۶۳/۱۱/۱۲

داستاد پژواک په لیکه:

# دحق لمر

بیا بشر بې سره شوی جوړ پرې بشر دی
بشر دوستو!؟ اوس ولې په محشر دی
زیر و بم د بم په هره خوا کښې خور دی
دویر ساندې دي عالم زیر و زبر دی
په هر ګام کښې لوېې کندې، لوړ پاڅونه
مخ په ویرانۍ توپانونه دي، خطر دی
مکانی اثر پرې شوی دی د عمرونو
په کندو د زمانې موتل سفر دی
پښو تر نه ځي هسکه غاړه به اوسپړي
زمانه ده، حادثې دي، زموږ سر دی
روغ زړه نه دي له دې خاورې نه وتلي
که چنګېز، که هلاکو، که سکندر دی
د انګرېز جهاني زور دلته اوبه شو
په زاریو د تزار نوی لښکر دی

سرخرويي تل په وينو د دښمن ده
د کابل بالاحصار کښې د ااشر دی
که د روس «شاپرک» هرځو بمباري کړي
چا وژلی په ګوليو د حق ملر دی؟
شپه اوږده، تاريکه ده، خو داده يم
خښ په زړه کې د سپېدو ځلند خنجر دی
دا منمه شپه اوږدېږي کله کله
خو سحر نه مري په دې مې هم باور دی
يخ به تېر شي ځکه تودي به د سکروټي
«پايښت بوله استثني قانون ګذر دی»

۱۳۶۲/۵/۲۹

کوټه

## د ځان مرګ

ډېرو سرو نه دي داغ کړي د ايمان د پاره
تاسو ايمان کړ تر پښو لاندې د امان د پاره
ژوندون ايمان او عقيده ده، ګني مرګ دی مرګ دی
افسوس پڅپله غوښتی مرګ تاسې د ځان د پاره

۱۳۶۲/۲/۲۳

# د تره کي په یاد

سور تره کی ،
په سره کلي کښې پیدا شو
سره روس ورکړل
ورته سره - سره کتابونه
تري نه زده یې د سرو وینو تو یول کړل
په خپل مغز کښې یې ساتل سره - سره فکرونه
څو چې سرې کودتا ور ووست د ارګ تخت ته
کړل جاري یې ژر - ژر
سره - سره فرمانونه
سور بیرغ ،
سور یې دیرک ،
سور یې تناب شو
کړل یې څوړند په سینو سره نښانونه
په وطن کښې یې سرې وینې کړې رواني
ټول یې سره کړل که وو کلي ،که ښارونه

هره خوابې سره ورځ راوسته

په خلکو

په افغان باندې يې بل کړه سره اورونه

څوچې سره باداريې کتل کړه قربانۍ ته

ترېنه پاتې سرې څوکې شوې

سره تختونه

رونې وينې فشان پرې راووست

خوسره نه شول

د تره کې په سرو وينو بالښتونه

د «سره عمر» شرميدلې پاتې يې «ژړا» ؤ

وو په «سره» نيکړيې جوړه

«ژړا - ژړا» خاپونه

کوټه: ۱۲/۴/۱۳۶۴

# د سر سيوري

نه پې کوره مسافره کومه ولاړ شم؟

ګاډی درومي هرڅوک ورپسې ځيلوکوروته

چې د سرسيوری مې دی پکښې موندلی

زه خوشاله يم يوازې دې دوو شپو سته : ۲۲/۸/۶۲، پېښور درياب

# غم

نه دځان په غم کښې نه یم، د جهان په غم کښې نه یم!

چې له ما څخه کوږ کړي، د جانان په غم کښې نه یم!

په دې نه یم چې څه وشول؟ په دې نه یم چې څه کیږي؟

د چپو په غم کښې نه یم، د توپان په غم کښې نه یم!

زمانه شوه ولې ورانه؟ مکان نو نه ولې وران شول!

د زمان په غم کښې نه یم! د مکان په غم کښې نه یم!

د تعمیر په ځای تخریب دی، د تجلیل په ځای تعذیب دی

د بدلون په غم کښې نه یم، د بحران په غم کښې نه یم!

که دا زمکه نسکوریږي، که آسمان پریږي، رانړیږي

د زمین په غم کښې نه یم، د آسمان په غم کښې نه یم!

که ناپالم که اېټم دی، نایتروجن که راوریږي

د جبران په غم کښې نه یم، د درمان په غم کښې نه یم!

خبر دې شلیږي دې، داکیږي، په ګلو ونې پسې لېونی یم

د لمن په غم کښې نه یم، د ګریوان په غم کښې نه یم!

ته باوري يې چې دا سرې وينې بر
نن کړ سباوي چې ته رنګين راوړي
د آزادۍ د ناوې لاس به سره کا
د مستۍ بزم به په شرنګ راوړي

ما د هلمند سره د حال په ژبه
کيسې د فتحې د جشنونو کړې
ما يې ليدلي دي ياغي خوبونه
ما سلسلې د تعبيرونو کړې

ته وايې مه غواړه له ما نه مستۍ
ژوندی جهان دی تو پانو ځپلی
ستا ځنځير دی د پايزيب شرنګهار
وحشي لښکرو دې کوڅې وهلی

ما لا پخوا دا خزانې قافلې
د خيل ژوندون په منزل وايستلې
هېر مې کړه ته وله د ځوانۍ يادونه
هيلې مې هم ته ولې نا بنا دې نسولې

زما سوال تر څو لو لوړ دی، زما غم تر څو لو بر دی
د افغان په غم کښې یم، د لبنان په غم کښې نه یم!
زما غم بس همدا غم دی، چې انسان هم څومره شته دی؟
چې الفت او انس یې نه وي، دې حیوان په غم کښې نه یم!

۱۳۶۳/۶/۲۹

پېښور

# فلکه!

په خپل وطن کښې د وطن د آبادۍ په تمه
او س بې وطنه د وطن په آزادۍ پسې یم
هضم دې نه کړمه فلکه انوییت خو دې کړم
ستا خوله کښې هم د خپل غلیم په بربادۍ پسې یم

۱۳۶۲/۳/۵

باجوړ، ناګي غاښي

# گران

ځان گران دی خو تر ځانه مې جانان راباندې گران دی
ثابته مې جهان ته کړه چې گران راباندې گران دی

سر بندم پرې څو د زړه محبوب مې نر پرېږدمه بل ته
رښتیا راباندې گران دی، په ایمان راباندې گران دی

چې کړې مې خاپوڅې یې په مینه دي په غېږ کښې
دا مور راباندې گرانه، دا دامان راباندې گران دی

زما د تن ذره - ذره یې جوړه ده له خاورې
ذره - ذره د ملک تر ټول جهان راباندې گران دی

جلال د "جلاله" لري، جمال د "افغاني" مې
"کونړ"، که "ننگرهار" دی، که "لغمان" راباندې گران دی

هر غر جنگي کلا ده، هره تره یې سنگر دی
"ځاځي" دی، که "منگل" دي، که "ځدران" راباندې گران دی

"لوگر" لکه لوی غر تل د دښمن مخ ته ولاړ دی
"پادخواب" دی، که "سرخاب"، "تنگی واغجان" راباندې گران دی

«کابل» چې حال کابل د دښمنانو د غـــرور
زورګیر کړې په زاریو دا مکان را باندې ګران دی
«مالخه» چې د «بري» یې تر آسمانه پورته رسـېي
یادګار د خپلواکۍ مې دی «پغمان» را باندې ګران دی
مغرور دښمن یې خوځوځلي مات کړ په مـــېړانه
«پنجشیر» را باندې ګران دی او «پروان» را باندې ګران دی
دښمن چې ورغلی ژوندی نه دی نړې راغلی
سرلوړی «کاپیسا»، مغرور «بامیان» را باندې ګران دی
د روس وحشي لښکرې چې د مرګ کندې ته سپارې
«سالنګ» را باندې ګران دی او «خنجان» را باندې ګران دی
د روس د سرو لښکرو یې مات کړي قـطارونه
«دوشي»، «پلخمري» ده، کهٔ «بغلان» را باندې ګران دی
«کندز» رښتیا کندیس دی که د دښمن ته د مرګ کنده
چې نغري د سنمنان، هغه «آبدان» را باندې ګران دی
لالونه د سرو وینو د شهیدو یې په ځلا دی
چې د اسې وینه لال کړي «بدخشان» را باندې ګران دی
د «بلخ» په «ذبیحانو» مې تاریخ کړي افـتخار
«مزار» د لوی اتل «شیر مردان» را باندې ګران دی

«سرپټ» بازاريې وران شو خو دښمن ترې سرپټ نشو
چې د وس په کښې قاش، «قاش دی» تاشقرغان راباندې ګران دی

د کور د دښمن سرونه يې سم - سم پکښې هوار کړل
قربان يې له بچونه «سمنګان» راباندې ګران دی

هر څومره که روسان وربانديې بلوسي، سرونه يې نشي
چې لوړه غاړه اوسي «چغچران» راباندې ګران دی

چې ساتي خپل وياړونه، د پردو له يرغلونو
«فارياب» راباندې ګران دی او «جوزجان» راباندې ګران دی

«تخار» دی، که «فرخار» دی، هر يو د افغان دی
چې هسکه غاړه ژوند کړي «شبرغان» راباندې ګران دی

چې کندې يې شوې دکې په روسي ټانک او عسکرو
«سبزک» راباندې ګران دی او «لامان» راباندې ګران دی

لوی وات په رنړا ورځ کښې په سره دښمن ترسور تنور کړې
دښمن ترې ميدان نه شي وړلی، «ميدان» راباندې ګران دی

له اوره يې کړې ور په کې، پر دښمن خپلې تورې کې
«وردګ»، «خوات»، «تنګی»، «شينز»، «زنخان» راباندې ګران دی

«غزني» که «قره باغ» دی که «شلګر» دی، که «مقر» دی
هر يو قوي سنګر د قهرمان راباندې ګران دی

زرگونه رستمان دې زالوی شوي په زانگو کښې
"زابل" ستا هر زوی، هر قهرمان راباندې گران دی
روزگار چې پکښې تل په میړیتون دی د دښمنه وې
پرې ویاړم، پرې نازېږمه، "روزگان" راباندې گران دی
"قنداره" ستا د قندو زهر ښلي دي روسانو
زوړ ښار دې، زوړ سنگر دی، د ایمان راباندې گران دی
"هیلمند" د ملي هیلو او ملي پوځ "لښکرگاه" دی
که "گرشک" دی، که "نیمروز" دی، که "سیستان" راباندې گران دی
"فراه" کښې دې پردیو د فرحت لارې بندې ې
"شینډنډ" چې پکښې روس دی سرگردان راباندې گران دی
زاړېږم د "هرات" له قهرمانو توریالیو
دښمن تری چې ورنکړ امان راباندې گران دی
چې هر تېری شنډېږي، یکې هر زور اوبه کېږي
وطن د میړنو افغانستان راباندې گران دی
الحاد او کمونیزم یې ځپلي ابدي دي
دا خوږ ملک د سپېڅلي مسلمان راباندې گران دی
چې ټول سنگر سنگر دی او سرخرو یه دی پرونو
وطن د ننگ غیرت او د ایمان راباندې گران دی

چا ویل چې وطن وران دی او ورانو بڅه خوند وي؟
ویران دې وي، ویران دې وي، ویران را باندې ګران دی
چې زړاو بچه، زوړ او ووړ او ځوان یې تول جهاد کړي
دا زملت، دا نسل قهرمان را باندې ګران دی
په نره یې سر اوڅکړ او په نره دښمن وژلي
«شهید» را باندې ګران دی، «غازي» ځوان را باندې ګران دی
چې لار کوي د روس په الوتکو او ټانکو کښې
دحق د مردکیو تو ند باران را باندې ګران دی
دا سره خونړه ورځ یې نوږ په سترګو لیدی نن شم
افغان ځکه کومه چې افغان را باندې ګران دی
غافل وُم په وصال کښې دخپل ګران اشنا له قدره
د وصل تر خوږوونه تریخ هجران را باندې ګران دی
«رفیعه» چې په درد کښې د وطن دې قلم خوځي
د تا هره انشاء او هر بیان را باندې ګران دی

۱۳۶۳/۱۲/۱۹

# تروږ شعر

د حالاتو په دُرشل کښې مې ښارانو
نن دا شعر زماني هسې تروږ دی. ۱۳۶۴/۵/۱۰

# یولیک

## دیو بېل اشنا په نوم

فلک څنګه مهربان شو نه پوهېږم ؟
چې د بېل اشنا له یاده بیا خبرېږم ؟
نوی کین یې نوی مهر کښې دی نغښتی؟
که رښتیا یې نو د ناز غېږې ته لوېږم!
ما وېل دواړه به تر مرګه سره مله وو
چې هم بېل یم هم ژوندی یمه شرمېږم
شکر دا دی چې د لیک لاره شوه خلاصه
خپل لیکونه رالېږه خپل به درلېږم!
هیواد یاران وو څنګه؟ حال یې څه وی؟
له هېچا نه خبر نه یمه څورېږم!
د ژوندون د سختو لارو په سفر کښې
څه به کېږي، څه به کېږې، څه به کېږم؟
اوښکو ژاړې چې له سترګو راجلا شوې
نو ما کال د بېلتون ورشو لا خندېږم!

۱۹ / ۶ / ۱۳۶۲ پېښور

# چاربیته

په وینو رنګ افغانستان دی
په هر یو کور کښې دي ویرونه
هغه ودان وطن اوس وران دی
دي پرې راغلي توپانونه



داد غوایه له بغاوته په وطن جوړې غلبلې شوې
د سرو روسانو له وحشته بلې په هره خوا لنبې شوې
د کمونیزم په لعنته ټولې دېرې مودېرې شوې
ورکه د نیاو او عدل پته چې سرې لښکرې راخورې شوې
په وطن کې چور او تالان دی
وړي یې سرونه او مالونه
په وینو رنګ افغانستان دی
په هر یو کور کښې دي ویرونه



سرې خوارې پرې را خوارې دی جنت نظیر وطن ورانېږي

هره خوا پلي دي، سپاره دي    خرسان په وینونه مړه پریږي
وطنداران خواره واره دي    هره خوا کډې ئې بارېږي
پاتې پراته په تناره دي    نر ودې اور دی پرې بلېږي
په هره خوا کښې بمباران دی
دي د زنګیرو ویو آوازونه
په وینو رنګ افغانستان دی
په هر یو کور کښې دي ویرونه
* * *
د کور پرځای یې نصیب ګورشو    د کمونستو په وعدو کښې
هر چاته خپل وطن سوراور شو    وسول د ظلم په لمبو کښې
وحشت په هره خوا کښې خور شو    آرام شو ورک کلیو ښارو کښې
له ورانې خالې پورته شورشو    آورو په تنو غلبلو کښې؛
« دا بشر دوست دی؟ دا انسان دی
چې بلوي په مونږ اورونه!»
په وینو رنګ افغانستان دی
په هر یو کور کښې دي ویرونه
* * *
خو پاڅېدلي شاڅلیان دي    په کامیابۍ مو اعتماد دی

چې جهادي سنګر ودان دي آزاد به وننګي مو هېواد دی
په غزا بوخت مو چې غازيان دي آخر راتلونکي عدل وداد دی
په وينو رنګ مو شهيدان دي د سرخرويي د زيري ياد دی

د سبا ستورې مو روښان دی
"رفيع" اېن کړ دي غمــــــــــونه
په وينو رنګ افغانستان دی
په هر يوکور کښې دي ويــــــــــونه

سنبله ۱۳۶۴ هـ،ش

# د ننګ تاريخ

ستا په مخ چې را خورې شوې د شهيد د وينو پرخې
سرخرويي دې کړه حاصله، ای د لوړو غرونو پرخې!
کتيبه ده د مېړانې، د شهيد په وينو ليک د ه
ترابده ژوندۍ ساته، دا د ننګ د تاريخ کرښې

۱۳۶۲ پېښور منظور عام پرديس

نه یو ناکامه نابلده سفر
د پردو غېږې ته راوړې یمه
دلته پو بنته د دردونو نسته
نه بې دردیو ګونګی کړې یمه

زما د احساس په تال کښې وړکې نغمې
د دې محفل د اورېدلو نه دي
زما د ګونګې ژبې خاموشې چیغې
دلته د چا د پوهېدلو نه دي

دلته یوې ښښلینې کړېکې سره
د ترویرو یو جهان وخوځېږي
چا به لا ستړګې د پولې نه وي
دلته زړګونې اوښکې وبهېږي

نه یو پردیس یو نا امیده شاعر
زما اسویلي د آورېدلو نه دي
نه د نصیب ښکارې وېشلی مرغه
نورمې وزر د الوتلو نه دی

# سوې مسرې

په وطن کښې د وحشت لړې خورې شوې
کندو وازې کړلې خولې سرې خورې شوې
پسرلی چې به غاټولو سره کولې
هغه دښتې په سرو وینو باندې سرې شوې
چې درلی وې، چې تودې وې، تالیدلې
هادیرې اوس سرتر پایه هدیرې شوې
چې ښادې چې آبادې ته مولرلې
ځوانیمرګې د عمرو - عمرو اسرې شوې
ځوانان ولاړل د وحشت ترکومي تېرشول
رانه لوټ مو ملې پانګې او پاسرې شوې
اوښکې ورکې شوې د وینو په سیلاب کښې
په سرو وینو باندې سرې سوې مسرې شوې

۱۳۶۶/۸/۸

# د نیل پر غاړه
## (بکرنش النیل)

نه د نیل پر غاړه ناست یم !
نیل روان دی !
نیل روان دی!
ورو - ورو اخلي قدمونه!
د هدف په لوري یون دی!
دا روان دی له پرونه
د سبا غېږې ته ربي!

***

زه د نیل پر غاړه ناست یم
څوپې - څوپې یې څپې دي
خو په تنتو اشاره کښې
راته سپړي ډېر رازونه
کوي ډېر حکایتونه
راته یاد کړي ډېر وختونه

راته سپړې تاریخونه

* * *

زه د نیل پر غاړه ناست یم !
رایادیږي هغه ورځې !
چې د نیل څوپو څپو به
تېرولې د نیل ناوې
او حسینې به نغرلې
دا د نیل غوښتنه نه وه
دا هوس د ها پاچاؤ
چې به نجونې خوښولې، غرقولې
د وحشي شهوت تسکین به پرې کولو

* * *

زه د نیل پر غاړه ناست یم !
څپې څوپې - څوپې د روحې
اشارې کښې راته وایي ؛
" څه شول هغه هوسونه ؟
بې حلیه شهوتونه ؟
زه شاهد یم !

دوی پناه شول

او د نیل حسینې ناوې

بیا په امن او سېدلې

نه چا ماته راوستلې !

نه او بو کښې ډوبېدلې ! "

***

نه د نیل په غاړه ناست یم

زمانه وهي څرخونه

راته ښکاري تېر فلمونه ؛

د فرعون شاهي تخت دی

ځان ته خدای د خلکو وایي

کړي چپه - چپه حکمونه

په تړلو - په وژلو

د مظلومو انسانانو

نه سرېږي ، نه مړېږي !

***

نه د نیل په غاړه ناست یم !

نیل روان لکه پرون دی

او په یون کښې راته وایي:

« ها فرعون د لته ګوره ؟

ها خدایي مقام یې کوم دی ؟

زما عبره کښې زبون دی !

غور ځولی ما دی بېرته

دی عبرت د تاریخونو !

* * *

زه د نیل پر غاړه ناست یم

پر زاړه قلم کښې ګورم

مصر یک له شر او شور دی

د زرګونو عالمونو پر مخ - مخ کښې

بنا بیستر یوسف خرڅیږي

په پیسو او په مالونو

هر یو نیسي یې له لاسه

غواړي دا ښکلی غلام کړي !

د انسان مقام بدنام کړي !

* * *

زه د نیل پر غاړه ناست یم !

قلم څرخ خوري راتاوېږي!
ښايسته يوسف ښکارېږي!
غلامي يې شاتړ کړې
د شاهي پر پالنګ ناست دی
او د نياؤ دور چلېږي!
د انسان سوداوې نښتنه
ودور په ودور باندې نازېږي!

***

نه د نيل پر غاړه ناست يم!
راته کړي حکايتونه،
راته کړي اشارتونه،
د نسل په ژبه وايي:
ډېر زوروکي دې ماليدلي
چې زما پښتوته لوېدلي
له غروره ډک سرونه
په دې کانو دوبېدلي:

***

نه د نيل پر غاړه ناست يم
او د نيل له حاله وايم:

فرعونان تل نسکوربږي
حق باطل باندې برېږي
زور زیاتی نه پاتې کېږي
بې له خدایه! مصنوعي خدایان غرقېږي!

***

نو:

نه د نیل پرغاړه ناست یم
په ډاډ منه لهجه وایم:
چې ای د عصر فرعونانو!
ای وحشي ښکېلاکګرانو!
ای د روس وحشي لښکرو!
نور راغلی هغه وخت دی
چې په لاره د فرعون به روانېږئ!
او د مرګ په رود نیل به ورګډېږئ!
دا به کېږي، دا به کېږي
کرخپه اوکه خوښېږئ!

***

نه د نیل پرغاړه ناست یم!

زه د نیل په ژبه وایم:
د افغان اولس د قهر رودنیل به
غرقوي د تزاري فرعون لښکرې
دا آزاد وطن به بېرته آزاد بېږي
د افغان مؤمن اولس به
خپلې خوښې ته رسېږي
د هدف رڼه منزل ته
به سمېږي هسکه غاړه!
زه د نیل پر غاړه ناست یم
نیل روان دی
نیل روان دی
ورو- ورو اخلي قدمونه!

۱۳٦۵/۹/۹
۱۹۸٦/۱۱/۳۰
مصر، قاهره
د راډیو تلویزیون ودانۍ
د نیل پر غاړه

# د وحشت غېږ

سرې - سرې اوښکې چې تويېږي مې ګرېوان ته
څه به وبخښي د مېنې ګلستان ته؟
نه يوازې ګل په سوي، بلبل په سوي شو
يوه چاره په کار ده دې سوي خزان ته
د وحشت په خوره غېږه کښې شلم پروت دی
حيرانېږم د شلم قرن انسان ته
ميته نشته، مېنې سرې دي په سروونو
ته لا اوس هم انسان وايې دې حيوان ته؟
يو ويشتمې پېړۍ ته چې رابرېږي
څوك به پاتې وي چې وبې غواړي ځان ته؟

۱۳۶۶/۸/۸

پېښور

د چرینکو د مرکېدو په ارتباط څو قطعې :

## خرس مرګي

خرس مرګي ده په روسیه کښې لګېدلې
لوی خرسان یې سر په سر مرې، کال په کال مرې
عجیبه ده ټول زړه چاودي ځي له تخته
د افغان د ارادې په پاخه ډال مرې

۱۳٦۳/۱۲/۲۰

## د اقتدار جنګ

اورو: «یو» کله یې «بل» مشر مردار دی
چې ګوښه شي ورپسې یې د مرګ وار دی
کودتا د کمونیزم هم اسرار وي
په مسکو کښې روان جنګ د اقتدار دی

۱۳٦۳/۱۲/۲۱

زما د خیالونو د نیاو نړیـــد ه
څه جهاني نړۍ جهان پاته دی
زما د آرزو پسرلی ورژېدی
نړۍ نسیم، نړۍ باغوان پاتې دی

زه ته را تېره کیله منه آشنا!
ستا له خوږو - خوږو ګیلو ځارځم!
ستاله سپېڅلو اســـــویلیو قربان
ستا له ویرجنو ترانو ځـــــارځم!

عبدالباري جهاني
واشنګټن
۱۹۸۵/ ۳/ ۴

# زوړيــن

چرينکو ؤ اندروپف ګورته لېــ بډلي
اقتدار د کي جي، بي بې ؤ رېتـــلي
څو زوړين يې لکـــه مېږه رانسکورکړ
ګوربه چف لکه ګربه ؤ ورتــه غـــلي

۱۳۶۳/۱۲/۲۱

***

بريژنف يې چې مــړدار شو کاريې زارشو
اندروپف يې له يوپف سره ګوزار شو
چرينکو که هرڅو وچړېده وخت تېرؤ
ګوربه چوف يوچوپ پرې وکړ په قــرارشو

۱۳۶۳/۱۲/۲۱

# امتحان

که هرڅو مې دافغان قصه اوږده شوه
د ښنه! ستا هم هدا شان قصه اوږده شوه

پروادار مې نه د مال او نه د سر یم
اوس چې ماته د تاوان قصه اوږده شوه

توجه! کښخ ته مې دامن بېرېږه باسه
چې پر ما د سرو توپان قصه اوږده شوه

څکه وینې مې له اوښکو سره درومي
د بمونو د باران قصه اوږده شوه

د بېنو نویه! د سره سحر په لوري
غرق خون دې شو کاروان قصه اوږده شوه

د روسي ښکېلاک قصه مې هم کړه ختمه
که زما د امتحان قصه اوږده شوه

د خوبه اشنا وصال به مې لا خوږ وي
که هرڅو مې د هجران قصه اوږده شوه

اور یې بوزې کړ د عصر په دیوانو
دریغ که د دیوان قصه اوږده شوه

۱۳۶۴/۱۲/۱۹

د خوشال بابا په ليکه،

# د خوشال بابا په مزار

که ته نه وای دې خړغړه تر به راتلل څوک
په حضور به دې داسې ژړېدل څوک
ستا کشش، ستا جذبه، ستا مقناطيس دی
گڼه نه څوک، دې لوړ ځای ته رسېدل څوک؟
هغه درد چې تا درلود ما سره هم شته
ښکېلاک يو دی، گڼه روس څوک دی، مغل څوک؟
بيا نا اهله خپل له بله سره مل شو
گڼه مېنه د افغان څوک وه او بل څوک؟
د نفاق درد چې تالید لا دوا نه دی
ځکه زه څوک يم او ځوان پاتې کېدل څوک؟
ته ترې لاړې جانکوړې، زه اکوړې ته
که بخت بد نه وي نو موږ څوک وو او تلل څوک؟
ستا له لاسه اوس زما لاس ته رسېږي
پر دې شان دې کړې د تلک توره تېل څوک

تاڅخپله اجازه رفیع تر ور کــــــړه
کښــه نه څوك، دې مقام تراختل څوك؟

۱۳۶۳/۱/۲۱

## مقابــــله

په ننګ، په غیرت، په سپین میدان مقابله ده
روانه په وطــن کښې دافغان مقــابلــــه ده
یو لور ته دي ټانکــونه، الوتــکې او بمــونه
بل خوا داراده او د ایمــان مقابــله ده

۱۳۶۱/۷/۱۸

## ټپي غاټول

په وطــن کښې اوس ـ اوس هم لاله غوړیږي
خو له لاسه د وحشت ټــــــپي کیږي
لا یې داغ د سوې زړه سپوږدلی نـــــه وي
چې په غـــبرګ د بیدیا کښې ورژیــږي

۱۳۶۳/۱۲/۲۱

# د بلخ د نامتو قوماندان ذبیح الله په شهادت

د دین د پاره ، د حق په لوري
د وطن لار کښې لاړې فدا شوې
ستا قرباني کړه الله قبوله
ذبیح الله وې ، ذبیح الله شوې

۱۳۶۳/۱۱/۱۲

پېښور

# فردوس

چې محروم نشم محشر کښې له فردوسه
ځان ساتمه پېښور کښې له فردوسه*
شیخ به ناست وي انتظار به د قیامت کا
شهید حظ مومي سنګر کښې له فردوسه

۱۳۶۳/۱۰/۱۸

* فردوس پر پېښور کښې د یوې سینما نوم دی .

د خوشال بابا په لیکه :

# منظوم لیك

یاره څه به درته کښېمه ، په څه باب کښېم ؟
زه به تا وته د هجر کوم عذاب کښېم ؟
د «هجرت» او د «هجران» غمو بیتاب کړم
نو به څنګه دا بیان په آب وتاب کښېم؟
د دوستانو دښمني درته بیان کړم؟
که دوستي د دښمنانو په کتاب کښېم؟
له هر لوري مې زړه خوږېن حال مې خراب دی
درته څه به د دې خپل خاطر خراب کښېم؟
نه وُم پوه نه به هېواد، نه هېواد وال وي
«چې به دا دغم بیتونه په پنجاب کښېم؟»

پنجاب، دریل سیون

۱۳۶۶/۸/۲۲

د سلطان محمود غزنوي د مزار د ورانولو په وير کښې؛

# لوی فاتح

هاغه لوی محمود چې مات یې سومنات* کړ
د منات، لات او عزی** ورود یې میرات کړ
کمونستو د هندوانو خوښېدنه ته
د هغه فاتح گنبد په بمو مات کړ

۱۳۶۳/۱۲/۲۱

# دروند غم

یو ځلو یېت کلونه د ژوندون را پاندې تېر شول
ټول په غمو تېر شول، ورځ په ورځ غمونه ډېر شول
سور وحشت د روس چې په وطن کښې زمونږ پلی شو
دا داسې دروند غم و چې پرې تېر غمونه هېر شول

۱۳۶۴/۹/۳۰

---

* سومنات د هند د مشهور بت نوم دی.

* لات، منات او عزی د جاهلیت په دوره کښې په کعبه شریفه کښې ایښودل شوي مشهور بُتان دي.

# دښمن

په خوله یې سوله ده، په زړه کښې یې د سر دښمن دي
د باطل مرسته کښي، د حق د حق سنګر دښمن دي
بشر بشر وايي جهان یې ټول له شره پاک دی
بشر یې سره کړي ربښتیا چې د بشر دښمن دي
مخ ترې تندر راولي دا د ښکلا لوټماران
هغوی چې غواړي سور سحر د ګلنډلر دښمن دي
د کمونیزم د رژیم، رژیم دی ویښ خوړل
دا رژیمونه انسانیت ته سراسر دښمن دي
که کمونیزم ګورئ ورشئ د خیبر نه هاخوا
هم د حیوان، هم د نبات، د سم او غر دښمن دي

۱۳۶۲/۱۱/۲۸

## په شینډنډ کښې د روسي الوتکو
## د بوځایي سوځولو د عملیاتو یاد



تول وطن مې پې شو دیاره کړ په چین
بیا یې تخم پکې وکاره د مین
ما یې هم مېلک لکه مېږې قرباني کړې
ګوندې څه یې شي ادا د دوستۍ دین

۱۳٦۴/۲/۳۰

پښین

## پر لیبیا تېری

ظلم دی یو، وحشت دی یو او بمباري یوه ده
که په پولینډ، په فلسطین، یا په لبنان کېږي
ښکېلاک: سور، تور، بشر دښمن او بشر دوست نه لري
تېری تېری دی په لیبیا، که په افغان کېږي

٦۵/۱/۲۷

پنجاب

# د مینې بقاء

دا د نیا ټوله زما شي ، په دنیا کښې چې تاوینم
له دنیا مې چې ته چېل شې ، بیا نو څه له دنیا وینم

څه عجبه زمانه شوه ، ټول کاروڼه په بل پېر شول
له پردي هم ستم وینم ، له آشنا هم جفا وینم

لا قیام د قیامت نه دی ؟ چې نفسي نفسي نفسي شوه
دي چاغ شوي په نفسونه که امي که ملا وینم

زړه پرېشانه پرېشانی کړي ، ستا په مینه یې راټول کړم
ځان له مانه چې ټول نه کړي ، ټولېده مې د ساوینم

لاس مې پرېږده د زړه سره ، ستا د زړه د سزد پاسه
چې دې زړه مره درزا کښې ، نه د مینې بقاء وینم

جمعیت که رانه ټول دی ، ټول په یوه سیلی خوره شي
رفیع ځکه په دې ټول کښې ځان بې یاره تنها وینم

۱۳۶۲/۹/۲۵

د ښاغلي شیخ نورعلي نور وینا :

# برېښ

زما ګران دوست شیخ نورعلي نور چې د پښتو حساس او دردمن شاعر او زموږ له خواخوږو انصار و څخه دی ، تل د افغانستان په ویر او ښکې تویوي او له موږ سره عمرازي کوي . لاندینی آزاد نظم ده د « اورونه او ویرونه » په ارتباط ویلی او رالیږلی ، که څه هم زه یې له شاعرانه مبالغو او اغراق سره موافق نه یم خو دده د مینې او اخلاص له امله یې دلته راوړم !



د پښتو ځلنده نمر دی
سمندر دی
د ادب د علم
خزانه ده
فرزانه ده
یو کلتور دی
مناره ده د ادب

# یو هدف

چې د باران یوه رڼه اوښکه یې ترخولې نروشي
په سمندر کښې مرغلره شي صدف د پاره
قومې - قومې نړه بر راټول کړم کراټول شي یو ځل
دغه بې نظمه تنظیمونه یو هدف د پاره

۱۳۶۳/۹/۲۸

# د روس ښځې

د افغان دیورانیمو د زړه دوکۀ
چې راپورته شو په کیف کښې له ښځې نه
دا زړه کله مضمون یې، ښکاري دا سې
چې روسیه به کاندي ورکه له زړه نه

۱۳۶۵/۲/۱۰

# نوې سا

زما نارام زړګی له ډېرو اندېښنو ویده شي
لکه ما شوم چې بې له موره په سلګو ویده شي

د وطن خاورې ستا ګرد و ته مې راغجه دستر ګو
لېچن به څنګه بې له دې پستو رنجو ویده شي

د آرزوګانو په مقتل کښې به خوب څرګی آشنا
پر دې بستر چې وغزېږي په عمرو ویده شي

رقیبه عزم بې یوه نوې غوندې سا اخلي
ستړی که هر څو په درېنو - درېنو خوبو ویده شي

د خیال د نیایې د عمرو - عمرو زنګوته اخلي
چې د غزل پر رنګین تال کښې په جوهو ویده شي

۱۳٦٦/۱۲/۲۲

# د زړه قصه

زما د زړه قصه د زړه پرغوږ و واوره آشنا
د سر غوږونه کله - کله سر سري اوري
ما معنوي ماته ورکړې خپل ما دي د ښمن ته
خلک به محض د میدان لرې برې اوري

۱۳۶۳/۷/۱۶

# د زړه کور

زړه مې ورو کی دی خو دومره لوی دی
د هر مظلوم غم ځایيدی شي پکې
هر یو ظالم ته د نفرت مېنه ده
هر یو جابر تلعین کېدی شي پکې

کوټه: ۱۳۶۴/۶/۷

# د بهار په لوری

د زړګي سترګې مې کږې شولې د يار په لوري
د يار په لوري د اشنا ځوندې د يار په لوري

د ننګ او ننګ ولتن وينسته هو مره نړۍ ته آشنا
خپل قدمونه چستو د افتخار په لــــــوري

د حق قصه راته اوږده شوه د منصور تر دره
ځکه بې داره ور روان يمه د دار په لوري

نه باوري يم چې سيلۍ به مدام نه لګيږي
د اخزانونه به مې درومې د بهار په لوري

۱۳۶۲/۱۰/۲۲

# يوه لنډۍ

پسرلی بياپر وطن راغی
ګلان راځي خو شهيدان خاورو ته ځينه

۱۳۶۲/۱۲/۲

# اصلي رنګ

کمونیزم لفاظي ده، فریبکاري ده
څو زمونږ ملک کښې ښکاره په اصلي رنګ شو
یورش وکاندې په خلکو اعلان مارش کا
جومات «رنګ» کړي په راډیو کښې وايي "رنګ" شو

۱۳۶۳/۳/۲۵

# دار

څنګه ښه بېلتون دی تر وصلت لا خو بلت لري
هر څه ته چې دید کړمه دیدار شي د آشنا
نه هغه منصور یم دخدای نصر مې ملګري دی
دار ته چې مې بوزي راته دار شي د آشنا

۱۳۶۴/۷/۲۵

# د افغان فخر

د افغان فخر په هغو ننګيالو دی
چې نه دار لري له بند او نه له داره
داسې فخر د افغان له پاره عار دی
مفتخر چې وي د روس له افتخاره

۱۰/۳/۱۳۶۵

نوبنار، د موټر يون



يار مې مار شو له بنماره سره مل شو
له بې سره استعماره سره مل شو
افغان څرنګه شي فخر پرې کولی
چې د روس له استعماره سره مل شو

۱۰/۳/۱۳۶۵

اکوړه، د موټر يون

# فاصله

پرون خر به ؤ هغه کته بدله
اون خره بدلیږي کته یې یوه ده
نو د ښکیلاک په سره ښکیلاک دی بدل شوی
د پرون او د نن دغه فاصله ده

۱۰/۳/۱۳۶۵

خیرآباد، د موټر یون

# ولایت

پرون ورور ؤ د ببرك خوئي یې نه دی
هی توبه د سیاست له اخوته
چې الهام ورته را دروځي له مسکوه
اوس اګاه شوم د ولي له ولایته

۱۰/۳/۱۳۶۵

اټك، د موټر یون

# رشته

چې شپېته کاله پخوا یې سرې جامې وې
ماویل دا یې نښانه د قربانۍ ده
خو چې نن د روس په سره بیرغ نازیږي
ښکاري داسې چې رشته یې پخوانۍ ده

١٠/٣/١٣٦٥
اتک

# د روس بار

مفتخر چې د روسانو په دوستۍ وي
کله ودروي یو او کله بل خر
څو دا خره وي د روس بار زمکې ترنه څي
نجیب راولي او لرې کا، کارمل خر

١٠/٣/١٣٦٥

اتک ؛ د موټریون

## ابدي مينه

مسخره مې کړلې نوري يـــــاراني
چې مې وويې ستا دمينې تـــــراني
ابدي مې کړه وطنه د تـا مينـــــــه
ځوانې ځوانې ځوانې مې په تا زمـــــاني

۱۳٦٤/۳/۲۳

کوټه

## هېــواده!

که ګــرانه ګــرانـه ! ګرانه هيـــواده
فارغ مې مه کـړې دا ستا له يـــاده
يم راوتـــلی ددې له پــارهٔ
چې دې آزاد کــړم له اســتبداده

۱۳٦٥/۳/۱٦

پنجاب، ګجرات، د ريل يـون

# مرام

په ځای کښې کښېناستل او یو لحظه غافلېدل
لوی جرم یې ګڼلې چې څوک قیام لري په مخ کښې
په دار باندې زنګل لکه په ټال باندې زنګل دي
معنوی ته چې هدف لري، مرام لري په مخ کښې

۱۳۶۴/۴/۶

# د سپېدو خنجر

ظاهري زخم مې نشته خو په زړه مې وینې دنه دي
نه پوهېږم څه راپېښ شول داد سترګو په ټکر کښې
په سحر کښې نه سنګارېږي، په غرمه کښې یې نه وینم
چې لېدلی مې کوم نور دی، د سپېدو په سپین خنجر کښې

۱۳۶۴/۱۱/۲۲

د ظلمت تورو تیارو لره
رڼا ده
یو بریښنا ده
هغه څریکه، هغه «بریښ» دی
چې وحشت هم
ترې وحشت خوري
***
د ادب د آسمان ستوری
رهنما
د ګمراهانو
لار ښود
د عالمانو
دده ژوندیو فلسفه ده
یو څېړونکی لټون دی
تجربه ده
انقلاب دی
زلزله ده
د وحدت یوه نعره ده

# لفظي بشر دوستان

چې کوروته ورانوي د کارګرانو
چې کښتونه سوځوي د بزګرانو
چې مالونه لوټوي د نیالګښانو
چې سرونه غوڅوي د ماشومانو
چې وژل کاندي، د ښځو بوډاګانو
چې کړي قتل د مظلومو افغانانو

دغه کار دی د لفظي بشر دوستانو
تف لعنت په کمونیزم، په روسانو

## حرارتونه

له مونږ ګان" ورېي څرخوي پرې خپل غرځونه
راکوي " بم، ورانوي مو پرې کورونه
دا دوستي ده؟ دا وروري؟ برابري ده؟
چې بدل شي پر دې راز حرارتونه

۱۳۵۸/۲/۲۵

# د پښتونولۍ پښتونولی

چې مینه په ملي ولس، په ملي څواک دی
چې دښمن د هر بښکېلاک، د هر زبېښناک دی
که هر څو تړې لړې څې بیا را غبرګېږي
د اولس غوښن خلاصوي داسې پښتونولی دی

۱۳۶۵/۲/۲۸

# آسیا

په افغان او په لبنان کښې کربلا ده
په ایران عراق نڼاره لوبلا ده
د انسان د ګکرو داني دل کېږي
آسیا څکه سرګردانه ده، آسیا ده

۱۳۶۵/۱۱/۲۱

# قدمونه

ناشنا لوري ته راغلم د آشنا په قدمونو
پلونه مې بيا کېښول د بابا په قدمونو
يوسف پاچا د حُسن دی د ناز په نيلي سپور دی
په مخ کښې يې ښکاريږي زليخا په قدمونو
کشکول د ګدايي يې په لاس دی شري خوږدي خوږدي
مجنون ښکاري چې پروت دی د ليلا په قدمونو
تا نه يې قرباني د امامانو کړه دنيا کښې
روان افغانستان د کربلا په قدمونو

۱۳۶۳/۹/۱۶

# ائتلاف

يو هدف ته مو وحدت و اتحاد شو
اتحاد د اختلاف په لوري درومي
هئ افسوس دی طلايي وخت مو تلف شو
ائتلاف اوس د اتلاف په لوري درومي

۱۳۶۵/۴/۵

یو استاد دی
یو پوهاند دی
یو جهان دی
یوه پانه د تاریخ ده
* * *
یو دردمند غوندې انسان دی
یو بلبل دی
د خزان وهلي
ګلستان بلبل
کوي فریاد
څو د هغو ګلونو
چې :
بې موسمه دي خزان وهلي
هغه ګلونه
چې یې تود باد هم لیدلی نه ؤ
نه پرې اوروونه
له آسمانه اوري
هغه غوټۍ

چې د سبا نسیم
هم لا سنګل کړے نه وي
نه دوحشت
پنجو کښې دل شوي
پاڅې - پاڅې شوي
ذره - ذره شوي
* * *
دا د افسوس
نغمه چې اورمه زه
د سوز او درده ډکه
دغه د چا دزړهٔ د کومې آواز
چې مې تر غوږه راځي
د چا آواز دی دا
څرنګه ساز دی دا
که سمندر
په غور ځنګونو باندې سر دی
که آسمان جوش کښې راغلی دی غرهیږي
دا څه آورمه ؟

دا څه دي ؟

دا ته ښکاري ترانه ده

چې غږېږي

د تورخم نه پورې غاړې

د افغانستان

د ډنګو غرونو په سر

څو:

دا ترانه د چا ده

دا سې له سوز نه ډکه

په آورېدو يې

چې کائينات

دا سې جوته وخوري

هن :

دا خو د "بريښ ، نغمه ده

چې پرېږي د غزه څوکه کښې

څو مجاهد

خپل خون من زره تر

دلاسه ورکوي

جهاد نور شعرونه هم ویلي دي او دا مې چې پرې ور زیات کړل یوه بله مجموعه ترې جوړه شوه نو ځکه مې ددې مجموعې نوم «بڼلې او ګولۍ» کېښود او د استاد پښواک دا ارځستناکه لیکنه مې یې په سر کښې راوړه او هم مې د ادبي دوستانو هغه لیکنې چې په «اوروونه او ویروونه» یې د نثر او د نظم په بڼه کښلي وې ورسره ملې کړې او ورسره مې د اوروونه او ویروونه کتاب د سریزې یوه برخه چې د «اور او ویر داستان» دی

په دې مجموعه کښې راوړه او دا دي خپل جهادي شعرونه له ۱۳۵۷ کال نه تر ۱۳۶۵ کال پورې د «بڼلې او ګولۍ» په نوم ستاسو درنو لوستونکو مجاهدو او مهاجرو وروڼو ځېني تر بندم او خپل ګډ دروند درد درسره سپکوم !

په مینه

ح - رفیع

پېښور - فقیرآباد

۵ / ۱۱/ ۱۳۶۵

پوې شومه

دا د سوزه ډکه

د « رفیع » نغمه ده !

شیخ نورعلی نور

بهادر کلي - پېښور

۸۴/۵/۱۸

خپلې خبرې:

# د اوړ او وير داستان

ورځې او شپې د زمان تسپې دي، له همدې ورځو نه هفتې او مياشتې جوړيږي او کلونه او پيړۍ، موږ د همدې شپو او ورځو په وسيله د زمان بدلون شميرو او د تاريخ يون.

د ۱۳۵۷ کال د غوايي او ومه نېټه هم د زمان د ناپاياوه سمندر په غيږ کښې يوه ورځ وه او يوه د شپږلو مهره. د دې ورځې لمر د سر وهلو په وخت سره بڼه درلوده او خونړيده، چې د افغان په هسک کښې يې د يوې «سرې ورځې» ښکارندويي کوله او زموږ په «پلټرليک» کښې يې د يوې تورې ورځې څرګندويي.

لمر هسک راغلی ؤ خو نيزې هسک، د سهار کارونه نوي پيل شوي وو او دفترونه نوي پرانستلي. د کابل ښار په شوحسکري قشلو کښې د ماشينګڼو ډزو او بيا د ټانکونو غورهار د عسکري آرامۍ فضاء سکوت مات کې او د دې منظم نظام نظم يې ګډوډ....

د هيواد پالو افسرانو ترسيلو کولې ووتلې او د غرخي پله د زغورو قواؤ له او سپينزې کلا نه د ټانکونو بهير را روان شو، د بالاحصار

داستاني حصار ته اور ورته کړ شو او د «ملي دفاع» د وزارت نړۍ د «۸۱۵» نومره ټانک ګولۍ سوري کړ . . .

راډیو افغانستان غوښنه خپرونه نوې پیل کړې وه ، دوې دري سندرې یې نوې خلاصې کړې وې چې ټانکونه پرې ورننوتل او د «عزبند» امر یې ورکړ ، د خوښې نغمې غلې شوې او د راډیو په څپو یو ویرمن سکوت خور .

ارګ تر اور لاندې ونیول شو ، مغرور «داؤدخان» د خپلو بې کفایته ملګرو په حلقه کښې بې تدبیره شو . هرې خوا ته یې هڅې وکړې خو هڅوک یې د «زارستان» پر وخت په کار نه شول او هیڅ د امید لوری یې ونه موند ، هڅې یې بې ګټې شوې او تکلونه یې بې نتیجې .

زه له تېر ماښام راسې خواشینی یم ، ځکه په هغه شپه د هېواد یو مشهور لیکوال مړ او یو پیاوړی ادیب ؛ د هېواد نامتو قلمي ځېره محمد ارسلان «سلیمي» ښیم ؛ زه پر هاغه سهار ددې لیکوال په جنازه تللی یم ، د ماسپښین دوې دوې نیمې بجې وې چې بېرته ښار ته راغبرګ شوم ، «میرویس میدان» ته چې را ورسېدم د وضعې اکر بکر بدل ښکارېدل ، ټکسي وانانو په تېرو خبرې کولې خو یوه ټکسي وان را واخیستلم ، د یولي تخلیک په مخه کښې ټانکونه ولاړ

وو، نه پوهېږم څو وېده شوی وم، په بيړه مې ځان کوټ ته راورساوه، کوټه چې ولاړم د ورور مور په وارخطايي راته وويل:
«کودتا شوې؟» ما په پام منه لهجه ورته وويل: «چا کړې؟ څوک کودتا کولی شي؟» هغې وويل: «وايي خلقيانو کودتا کړې! دا دي راډيو خبرې نه کوي! ...» او راډيو مې يې مخې ته کېښوده، د راډيو پيچونه مې تاو راتاو کړل هغه نه غږېده، دوه درې بجې به شوې وې، د مېلمه کوټې د «باغ بالا» د لوړغره په لمنه کې ښې ؤ، پرتخت بام کېښناستم، دوه دوه يې راوړه، اشتها مې سوځېدلې وه، وارخطا شوی وم، خپه ورته خوړلای شول، زه همداسې غلې او رنګ الوتلی پر څوکۍ ناست وم چې دوې جيټ الوتکې رابنکاره شوې، په کابل ښار يې دوره ووهله او بيا يې د «خواجه رواش» په هوايي ډګر بمونه واورول او د الوتکو «الوت کوښه» يې ورانه کړه، ما دا هر څه په غوږېدلو سترګو ليدل او د بت غوندې ورته ناست وم.

د الوتکو د الوتنې چټکې شوې، ارګ هم بمباري شو، په قرغه او قواي مرکز هم بمباري وشوه او په نور ښار هم.

لوړ مانېګر ؤ، له کوره راووتم، «پروان مېنې» ته رابنکته شوم، هلته مې ديو دوست کور ؤ، هغه د راډيو افغانستان مامور

ؤ ، دی هم په کور کښې رنګ الوتلی او زبېښلی ناست ؤ ، د پېښو پوښتنه مې ترې وکړه ، ویل : « عسکرې کودتا شوې ، په پاو باندې دوولس بجو راډیو محاصره شوه او موږ یې ترې را وایستلو ! » .

د ماښام خړه راخورېدونکې وه چې د دوست له کوره مې راووتم او د "باغ بالا" په لور پلې را روان شوم ، د "بهارستان سینما" په مخه کښې چې روان ؤم ، د خلکو ګڼه ګونړه نه وه ، هیڅوک نه ښکارېدل ، ټول خلک په کورو ننوتلي وو ، د سینما په مخه کښې یو خیرن پیرن هلک ولاړ ؤ ، خړې جامې یې اغوستې او یو خړ شادر یې په اوږه ؤ ، غږ یې راته وکړ : « مه راځه ! » ، زه ور روان ؤم ، رامنډه یې کړه ، په وحشت یې غږ راته وکړ خوله ما هم بې اختیاره لاس ورواچاوه ، بېرته یې ژر پرېښودم او ترې روان شوم له روانېدو سره پوه شوم چې دا « خلقي ځوان » ؤ چې د دوی د ناروا قدرت له پیل سره د وحشت د تمرین قوماندو ورکړه شوې وه .

بېرته چې کور ته راورسېدم په راډیو کښې مستې نغمې پیل شوې وې ، همدا نغمې موږ د ۱۳۵۲ کال د چنګاښ په شپږم ویشتم سهار هم اورېدلې وې ، خو هغه وخت ډېرې خوندورې او خوږې وې او نن ډېرې دردوونکې او ویرمنې .

څو شیبې وروسته راډیو د خونړۍ او وحشیانه کودتا بریالیتوب اعلان کړ او د «خلق» هغه رټل شوې کلمه یې چې زموږ په خپرونو او راډیو کښې یې ځای نه درلود بیا په وار- وار لاندې باندې کړه ۰

د توپونو ډزې او د الوتکو بمباري همداسې روانه وه ، پر آسمان هم له ماښام سره تورې ورېځې راخورې شوې وې او د ویرجامې یې اغوستې وې ، لاندې د توپونو غورمبهار ، په هوا کښې د الوتکو غورهار او د بمونو کړسهار ؤ او په هسک کښې تونده برېښنا اوتنا ، شپه یې ډېره مهیبه او ویرونکې کړې وه ، چا له ډېرې خوب ونه کړای شو او په هغې شپه آسمان زموږ د بدحالی او بد بختۍ په ییل وژړل ، ډېر یې وژړل او د باران په جامه کښې یې له شمېره وتلې اوښکې تویې کړې ۰

سهار تر د ارګ د لوړ «ګنټه ګر برج» د زنګی ساعت غلی شوی ؤ ، هغه کلنګ چې ساعت په ساعت یې شمېرلي زنګونه وهل ، له کاره لوېدلی ؤ ، ډګرېه عقربونو نور دقیقې او ساعتونه نه شمېرل او دوی د تل له پاره د آزاد افغانستان د آزادۍ وروستی شیبې ثبت کړې وې او ځای پر ځای پرې دربدلی وو ، د غلامانو د الوتکې بم ددې برج یوه برخه نړولې وه ۰

د ارګ د شرقي دروازې د پاسه لوی ، لوړ درې رنګه د آزادی بیرغ چې هر سهار به یې د لمر زرینو وړانګو سلامي کوله ، د وحشت له ګوزار سره را نسکور شوی ؤ ، د دروازې د پاسه یې په نیم ځوړند ډول د ویر رپا کوله او د خپلواک افغانستان د استقلال ویر یې تمثیلاوه .

« داؤدخان » چې په افغانستان کښې یې د روسانو د رختې کولو لویه ګناه په غاړه وه ، ټوله شپه د روس له غلامانو سره جنګېدلی ؤ د « تسلیم » - تسلیم ! » چیغو ته یې په ګولیو ځواب ورکړی ؤ ، په زرهاوو ګولی یې ویشتلې وې او بیا یې د خپلو ګناهونو کفاره په خپلو وینو وینځلې او د سهار له رڼا سره یې سینه غلبېل غلبېل وه او په خپلو وینو کښې لژند پروت -

دا په افغانستان کښې د اوراو وینو د داستان پیل ؤ ، ورپسې دلویو ویرونو او ملي بد بختیو لوی بهیر .

خلقیانو دې غلامانو او ځیره خورو ته روسانو د وحشت قوماندە ورکړه اودوی هم نوي - نوې وحشت ته لاس وغزاوه . د کورونو لټول او لوټل ، د عقیدو پلټل ، د دیندارو او هیوادپالو کسانو نیول او وژل ، د عزت د کسانو سپکول او تحقیرول ، د مالونو ، جایدادونو او شتمنیو ضبطول ، د نرو د ښځو تاره کول او د نورو د ښمنیو پیداکول هم

چا ته په شک او سپکه کتل او د هرې ودانۍ ورانول یې پیل کړل.

مغرورو خو بې مایې خلقیانو هر یوه یې دا حق درلود چې هر څومره کسان یې پوښتنې ووژني او په خلکو چپه میږځنې وکړځوي د وحشت او انسان وژنې مسابقه پیل شوه، هر یوه کمونست به هڅه کوله چې تر بل زیات ووژني او له دې لارې ګوندي کړیلونه تر لاسه کړي او د چټک پرمختګ سند.

خاین تره کي به په راډیویي او تلویزیوني وینائي کښي ویل کاوه: «چې په ملکي کښې له علاقه دار نه نیولې بیا ترما او په عسکري کښې له دګی مشر نه نیولي بیا ترما ټول خلقیان په کار و ګومارل شوي» او بیا به یې ورته ویل چې: «دا نوی مونږ لږ مونږ په سل میله کښې دوه سوه میله وزغلوئ! لارې درته آزادې دي!».

هو! دوی د ناروا قدرت دا موټر په زرهاؤ میله کښې وزغلاوه او هرڅه یې پرې برباد کړل او په خپله یې د اقتدار د موټر پرزې هم ذرې ـ ذرې.

د خلقیانو په دستور د دهمزنګ د زندان او د ټولو ولایاتو د جنایي بندیانو د زندانونو ورونه پرانستل شول، د جانیانو او قاتلانو دوسیې وسوځول شوې او بیا یې دوی ټول خوشې کړل او له ځان سره یې تنظیم.

دخوځي په جهنمي زندان چې داؤدخان جوړ کړی ؤ
د هغه د کوربه په پاتې غړو افتتاح شو او پکښې واچول شول
او ورپسې يې د «هل من مزيد» خوله خلاصه کړه او په لس هاؤ
زره افغانان يې تر ستوني ننبر کړل؛ زندانيانو په جهنمي حالاتو
کښې ژوند کاوه او هره شپه به په لسهاؤ تنه ترې ايستل کېدل،
په تورو موټرو کښې به «پولیګون» (وژل ځای) ته وړل کېدل
او لاس تړلي به د ماشينګنو نښه ګرځېدل، په هر ولايت او هره
اولسوالۍ کښې زندانونه ډک شول او پوليګونونه جوړ.

د آزاد او آرام وطن هره خوا وحشت ونيوله اوو ژلو،
اور ونيوله او وير، وينو ونيوله او ويرې.

د روسانو د سنجش په خلاف افغانان د خلقيانو وحشت
نه يوازې داچې غلي نه کړل بلکه را ويښ يې کړل، راولاړ يې
کړل، راوې پاروول، را غونډ يې کړل، را لښکري يې کړل او بيا پر
له پسې د هېواد په بېلا بېلو برخو کښې قيامونه پيل شول او پاڅونونه،
حملې پيل شوې او بريدونه، جهاد پيل شو او د حق او باطل خونړۍ
جګړه.

څومره چې وحشت زيات شو، هغومره مقاومت زيات شو
او څومره چې تېری زيات شو، هغومره مقدس دفاع پياوړې

د هیواد هر دیوال او کنډو سنګر شو او د هیواد هر بچی سپاهي او عسکر .

مغرورو خلقیانو درانه او د ایمان پاخه سوکونه وخوړل ، په سپینه ورځ عسکري او ملکي ولاړ پدلي ورته وشوې ، دوی په بې رحمۍ وکوټلې خوهغه په بېرته ډېرې شوې او خورې او په پای کښې د قیام سنګرونه دومره ډېر شول چې تر وس تېر شو د هغه ګټونه .

روسانو خلقیانو ته بې توله مهلکې وسلې را ماتې کړې خو خلکو په تش لاس ماتې او له خلقیانو نه پاتې کړې ، له دې بې ایمانو نه یې د ایمان په زور ونیولې او د همدوی په وسلو یې ورسره جهاد نود کړ .

د افغانستان د ایماندارو او میړنیو خلکو د قهر د توپان په څپو کښې مغرور خلقیان رانسکور شول ، تس نس شول او خبرې دې ته ورسیده چې په خپل منځ کښې سره ولوېدل ، پرچمیان یې سره وشړل ، نابغه استاد (؟) تره کی د خپل وفادار شاګرد په لاس باد روان او د دوزخ ژورې کندې ته ور روان شو ، خاین امین د سقوط په پوله ولاړ ؤ ، د اولس د قهر سره اور ته رالویدونکی ؤ چې روسان په وارخطایۍ سره را میدان ته شول ، دی یې

بقلم استاد پژواک:

# یا حق!

**از کیان ما دگر شهنامه ها نتوان سرود**

**بعد ازین خواهیم گفت آوارگانی داشتم**

نازیدن به کیان برای فرزندان کشوری باستانی مانند افغانستان در میان عواطف پاك سرمدی یک احساس فطری و ابدیست، چندانکه انسان آرزومند است بعد از مرگ در وطن خودش بخاک سپرده شود. و اما چنانکه همه آوارگی ها یکسان نیستند همه آوارگان را نیز نمیتوان همسان شمرد. این چندگونگی در میان کیان هم هست: آنانیکه بنام شان باید نازید و آنانیکه نام شان مایهٔ ننگ است.

درود بر ارواح پاك آن آوارگانی که کودکان و فرزندان برهنه و گرسنهٔ شانرا در غربت گذاشته به وطن باز گشتند، با دشمن جنگیدند و جز کارنامه و سرافشان میراثی نگذاشتند و درود بر آوارگانی پی آنانرا میگیرند و سنت مقدس شهیدان راه حق و آزادی، جهاد و مبارزهٔ ملی را فرض عین میدانند جان می سپارند

ژر ددې او ر خوراک کې خو خپل ناروا قدرت يې د «لوټ تيري» په وسيله ونه غوړه او د شلمې پېړۍ شاه شجاع ببرک شا يې د ښکارې زرک په توګه تخت نشين کړ او رئيس جمهور (؟).

روسانو سل زره کسيز سوراو نه ماتېدونکی (؟) پوځ راووست او يې شمېره وسلې، بمونه او الوتکې . دوی نور افغانستان اشغال شوی وګاڼه او د افغانانو قيام او مقاومت ختم شوی.

پر هیواد باندې یو ځل بيا تر توپان وړاندې چوپتيا خوره شوه خو ډېر ژر، د روسانو تر راتلو څو هفتې وروسته په کندهار ښار او هرات ښار کښې د «الله اکبر» ملکوتي غږ دا سکوت مات کړ، خلکو پاڅون وکړ او د ۱۳۵۸ کال د کب په دريمه نېټه د «الله اکبر» د باعظمته غږ سره په کابل ښار کښې هم عمومي پاڅون وشو او ملي قيام د ۱۳۵۹ کال په پيل کښې روښنفکرې قيامونه پيل شول او پوهنتوني، نجونو او زلمو تش لاس سينې ټوپکو ته ډال کړې، استعماري ښوونې او روزنې ته يې لته ورکړه او حتیٰ د وړکتون ماشومانو هم د روسي شيدو «نه خوړل» اعلان کړل.

د روسانو ددې دوهم پړاوېز وحشت نتيجه هم معکوسه

وه او د قیام په بل شوي اور « تنبل » ، د دې اور لمبې ورځ په ورځ لا لوړېږي، تونديږي او خوړېږي او انشاء الله هغه ورځ لرې نه ده چې د دې اور لمبې به د نړۍ دا لوی شدادي او فرعوني قوت هم لوخړه کړي .

د اور او وينو دا تراژ يدي روانه ده او زموږ ډېرې مادي او معنوي شتمنۍ يې ونغړدلې خو زموږ د اولس پاکې ، سرې او تودې وينې ګواهي لي : چې دا وينې به رنګ راوړي او د آزادۍ د ناوې دلاس او پښو نوکرينې به شي .

زموږ د ميړني ملت ايمان ډاډ راکوي چې د ښمن ته به امان ورنه کړي او د ټکې فرصت ته به يې پرېنږدي .

موږ باوري يو چې زموږ ناولی او وحشي د ښمن به ډېر ژر زموږ له خاورې نه ځي، سروهلی، بروهلی ، شرمېدلی او ماتې خوړلی .



د اور وينو او وير د ډېرونکی داستان زما د ژوند داستان هم دی، زه هم د دې توپان ډيوه کوچنی خس په توګه لکه چې تاسو ولوستل له هماغه پيل ځخه له ځايه خوځېدلی يم ، بيا مې د خوښۍ او آرامۍ شېبه نه ده ليدلې او بيا له دې اور او وينو نه لرې نه يم پاتې

شوی .

د دې وحشي توپان څپو کله په کابل کښې سائلـــم

چې د خلقیانو او روسانو تر لاس لاندې ؤ او هر آن یې د عقیدو

تلاشي کوله او د کورونو لټول او هره لحظه به یې بېول کـول،

وژل او د عقدو تشول ؛ کله یې دارالجهاد او تودو سنګرونو

ته ورد ګوته بېولم چې زمونږ کلی هم هلته ؤ او د جهاد مرکز،

او هلته به د خلقیانو وحشیانه حملې وې، انسان وژنه او د ماشومانو

او ښځو د عزو غاړونو او سمڅو ته تلل او د کورونو ورانېدل؛

کله به یې د زندان وسپنیزو پنجرو ته اچولم چې هلته به

وهل وو، تکول وو، برق ورکول او رانـ رانـ روحي او جسمي

تکلیفونه لیدل ؛ او کله به یې د مهاجرت په کاروان کښې روان

کړم چې کډې وې، ماشومان او ښځې، سر وهلي بروهلي، در

په در، بې سر سیوري او بې خیمې، د صوبهٔ سرحد په ګرمیو

او د بلوچستان په دښتو کښې -

زه په دې خه باندې شپږو کلونو کښې په دې دوا ن

بهیر کښې که هر څو سرګردات او پریشان شوم خو پښیما ن او

ستومان نه شوم ؛ که په کلي کښې وم یا په بند کښې ، زندان کښې

وم یا په مهاجرت کښې ، د قلم د سنګر نه په څنګ نه شوم، مره شهه

به مې له ځان سره محاسبه کوله چې : « تا نن د نورو کارونو ترڅنګ د جهاد په لاره کښې ترم ګام اېښې او څه دې کړي دي؟ »

په غونډو - منډو، په شبنامو، مقالو او خاطرو سربېره چې په دې دوران کښې مې لیکلې، شعر هم زما د دې دورې یو دایمي ملګری و، هر وخت به مې دې مارغه د فکر په سر سیوری کاوه او د دې حالاتو په ارتباط به یې یو څه را مینځ ته کول چې کله په داسې هم وشول چې مځ د لیکلو وخت به مې ورته ونه موند او بېرته به په ذهن کښې ورک شول، کله به مې ولیکل د ساتلو ځای به یې نه و چې بیا یه مې د خلقي لوټمارانو له وېرې کله د کوټې په چت کښې ځای په ځای کړل او کله به مې په ځمکه کښې خښ کړل چې په دې سلسله کښې هم یو برخه رانه ضایع شول.

یو وخت مې چېرت وواهه چې نوی لیک دود (رسم الخط) اختراع کړم، خپل شعرونه او خاطرات مې پرې ولیکم او که په تلاشه کښې راوونیل ورته وایم به چې : « دا ماله یوه زاړه قلمي کتاب نه رانقل کړې چې خط یې لا تراوسه نه دی پېژندل شوی او په دې امید مې دا نقل ساتلی چې که یو وخت رلوستل شي . » دا کار مې هم وکړ، مېنځي خط ته ورته لږ څه بر څنللي توری مې جوړ کړل، لیک دود مې

«فونیمیک» بڼه درلوده یعنې حرکاتو او واولونو ته مې هم توري جوړ کړل چې د تورو شمېره یې تر پنځوسو اوړېده؛ د لیک دود کلي مې بېله ولیکله او یادداشتونه مې بیا بیل ولیکل؛ یوځه شعرونه او یادداشتونه مې پرې خوندي کړل څو د «کلي» ساتل یې خطرناک وو نو دا لیک دود مې هم دود نه شو، ددې لیک دود کلي او نمونې مې ساتلې چې په خپلو خاطراتو کښې به پرې مفصلې خبرې وکړم، (انشاء الله تعالی).

څه شعرونه مې چې په ډېر کړاو ساتلي وو ډېر ځل مې ددې خورو ـ ورو شعرونو د راغونډولو او چاپولو تکل وکړ او هڅه؛ خو تراوسه یې په چاپولو بریالی نه شوم ځکه زما لاس تش ؤ خو د چا جیبونه چې ډک وو هغو ته یې د اوبدولو بې همتي نه منله نو دادی تر ننه دا شعرونه چې د جهاد له پاره وو، د مجاهدینو له پاره وو او د جهاد د سنګر له پاره؛ هداسې ناچاپ پاتې شول او نن یې هم په تش لاس او د مطبعې د مساعدت په ډاډ چاپ ته سپارم او ستاسو لاسونو ته یې در رسوم.

دا شعرونه له ډېرو توغونو وتلي، ډېرې سختۍ یې لیدلې او ډېرې سختۍ مې پرې لیدلې؛ ډېر ضایعات یې ورکړي او ډېرې پارچې یې له منځه تللې خو دا څه چې پاتې دي دا د جهاد د سرمایې

او پانګې په توګه دلته خوندي کوم ، کېدای شي ګوندې د دې شعرونو په وسیله زموږ او ستاسې په دې ګډه درد او غم کښې له تاسو دریو لوستونکو سره شریک شم او دې درانه پېښې ته د زغم او د حق د بریې په لاره لا ښه اوږه ورکړو .

زه باوري یم چې زما دا شعرونه نه ادبي کیف لري، نه یې د دې توان مونډلی چې د افغانستان د بې ساري تراژیدۍ یوه کوچنۍ برخه انځور کړي خو په دې لاره یې وړاندې کوم چې دا زما د احساس او ضمیر غږ دی او د افغانستان د ملت په دې سخت شېبو کښې زما د درد او دوک یو کوچنی تصویر، نو ځکه د ناموزونو او نامربوطو جملو تر څنګ د ښاغلي ایوب صابر خبره یو ـ یو الهامي بیت هم پکښې شته ، داسې بیتونه چې بې اختیاره مې خولې ته راغلي او په بیړه مې کاغذ ته سپارلي دي ، په دې الهامي بیتونو کښې یې ځینې راته یاد دي لکه :

زما قاتله ما چې نن دیل په لاسو وژنې
ښکارې ستالاس یې هم ترېلې د سبا د پاره

یا :

د وینې تېلو د همت د یوه مې بله ساتۍ
له هرې خوا د تو پا نونو سلسلې د ې راځې

یا :

اوښکو! ژاړئ چې له سترګو راجلا شوئ؟

زما ګال د بیلتون وشو لا خندېږم!

او داسې یو - یو نیم بل بیت هم .

داؤ د ملت له تریخ داستان سره مل زما او زما د شعر تریخ داستان هم ! که اوس هم زما شعرونه زما د زړه غوښتنو ته ور سولای شي او ستاسو د زړه له غږ سره ملتیا وموهي ما د خپل ټول زجر اجر موندلی دی .

په مینه

حبیب الله رفیع

کوزتاګال ، پېښور

۱۳٦۲/٤/۸

# لویه خدایه!

ډکې خوږې راوتــــلی یم له کـوره
امید ونه مې راوړي د تا کــور تــه

د افغـــان په کــور د ظلم اور بــــلیږي
ابراهیم غونډې لویه لې دې سره اور ته

افغـــانان خو ستا مخلصه بنــدګـان دي
ستا په داده یې ملاتړ لی، دوخت زور ته

په خپل فضل، په خپل رحم بری ورکړې
چې شي درس د تاریخ پاتې هر سر زور ته

لویه خدایه! لویه هیله مې پــوره کــړې
چې مو ســر وي په سیالانو کښې تل پورته

۱۳۵۹/۸/۱۵

بیت الله شریف: مقام ابراهیم علیه السلام

# د لمر خیره

نن د شپې عمر ؤ پای ته رسېدلی
د تیارې په زړه خنجر د رڼا ښخ ؤ
هغه لمر په راختو ؤ په جهان کښې
چې د ټول کون و مکان د مولا خوښ ؤ

د باطل د ژوند دانه په ختمېدو وه
د حق نور په ځلېدو ؤ هره خوا کښې
د ظلمونو د ظلمت په خاتمه کښې
ؤ نیاؤ د نظام زېری په دنیا کښې

جهالت په مجهول لوری ؤ په تیښته
علم ځلنده رڼا را خوروله
د تقدیر فیصله شوې وه محکمه
د انسان د ژوند صحنه یې رڼوله

چې انسان، انسانیت پرې سلامت شي
د سلام او د اسلام د دین آغاز ؤ
چې شکونه او وهمونه ټول مغلوب کړي
په نړۍ کښې دیو پوخ یقین آغاز ؤ

چې وروري، برابري انسان ته ورکړي
دیوه داسې پاك آیین مقدمه وه
د ایمان داسې وسله په راوتو وه
چې په ټولو قوتو یې غلبه وه

محمد رسول الله څکه پیدا شو
چې اوږه ورکړي دې نوي قیادت ته

وراه ابدیت می سپرند .

همچنان

درود بر آوارگانی که با خامه و زبان مبارزه میکنند و با فکر و بیان در دفاع از نوامیس معنوی وملی جان می کنند، اشعار شان سرود غازیان ، مرثیهٔ شهیدان ، زمزمهٔ بیوگان ونوازندهٔ یتیمان است ، اینها تلامید رحمان هستند .

خوشال خان ختک آن مرد بزرگ ملی با خامه و شمشیر جنگید . خود شمشیری بود در دست زمان خویش که قدرت او را در افق شهامت ملت افغان در برابر بیگانگان آخته بود . هنگامیکه آفتاب زندگانی وی نشست وآن تیغ برهنه در غلاف خاک گزارده شد قریحهٔ جاوید وخامهٔ سرمدیت آفرین وی کارنامه های سر-افشان او وسربازان شهسوار هرکاب او را بر جریدهٔ روزگار و برگ های اعصار نبشت وبر لوحهٔ فرخندهٔ وآفرین فخر نامهٔ ملت او رسم کرد ، ارژنگ نگارینی که حواشی آن با خون کشتگان راه آزادی مزین است ، نگاری که نخواهد زدود و رنگی که نخواهد خشکود .

اگر قلم ها نبودی چشم معنویت ملت افغان آن علم ها را برافراشته ندیدی و برخود نگری های مقدس خویش روشن

دی بشیر شو، دی نذیر شو ټول بشر ته
د بشر مخزي وکړه هدایت ته

درود ونه دي پرده دده پر آل وي
سلامونه استوم دده امت ته
ژوندي مونږ ته عقیده او هم جهاد کړ
مسلمان ځکه خوښیږي شهادت ته

۱۳۶۲/۹/۲۶

پېښور، کبابیان

# ژړا

فلکه ستا له لاسه ده وژړل، ما وژړل
هغه او دغه، خپل، پردي، دوست او اشنا وژړل
د غم لپاره یې یو ځای هم سره پرېښودو
هر چا ځلا، ځلا، ځلا، ځلا، ځلا وژړل

۱۳۶۲

جوزا

# دحق کور

«حق»

یو نوم دی ،

یو مفهوم دی ،

یوه وړوکې کلمه ده ؛

خو یو لوی غوندې قوت دی !

پکښې پروت یو لوی جهان دی !

حق ډېر لوی دی ،

ډېر عظیم دی !

حق ډېر لوړ دی !

له مادې او مادیت نه !

د دنیا له کثافت نه !

* * *

«حق»

یو نور دی ،

یوه رڼا ده ،

یوه وړانګه ده ،

يو لمر دی ،

د ا د ختهو تور جهان پرې منور دی ،

حق ته ګوتې نيول کيږي ؛

خو دا لمر پرې نه پټيږي !

او دا نور کله نوريږي !

* * *

«حق»

يو جسم دی ،

يو ځان دی ،

د معنی يو لوی بدن دی ؛

خو باطل يې لوی دښمن دی !

باطل تل په تياري دی ؛

ورته جوړې کړي لښکرې ،

ورته بل کاندې اوروونه ،

ورته کښېنوي داروونه ،

پرې کوي د ماشينګنو، د بمونو، د توپونو ګوزارونه ؛

خو حق تش لاس وروان وي :

هسکه غاړه

بې له پاره ؛

نه له داره لري وېره،
نه له اوره پناه کېږي
او نه هيڅ وخت مغلوبېږي !

* * *

«حق»

موجود دی ؛
يو وجود دی ،
له ازله تر ابده ،
تل ژوندی دی ، تل ژوندی دی !
دار ته خېژي ،
خودا ستونی :
رسی نه شي بندولی ،
او ريې نشي سوځولی ؛
د بمونو، د توپونو ګوزارونه دي پرې کېږي ،
خو حق کله شي وژلی !

* * *

«حق»

د « ح » او « قاف » ترون دی ،

یوه ورړوکې کلمه ده ؛
خو د ژوند یو لوی مضمون دی !
په دې لار کښې قربان شوي ،
ډېر ځوانان او ډېر مېړونه ،
ډېر له عزمه ډک سرونه ،
خو تیت شوي کله نه دي
د باطل ناولو پښو ته !
دوی پاللی انسانیت دی ،
دوی ساتلی د حق نوم دی !

* * *

« حق »

یو غږ دی
یو تکبیر دی !
را ولاړ له ملکوت نه !
عرش الله یې لړزولی ،
کائنات یې خوځولي !
غلی شوی کله نه دی !
لا لوېږي - لا لوېږي

لکه تندر له آسمانه
د باطل په سر رالوېږي
* * *
" حق "
یو توغ دی ،
یو بیرغ دی !
چې رپیږي په جهان کښې!
له ربا سره یې ربړدي :
د باطل بتول قوتونه !
ماتوي یې په میرانه
په قوي وسلو پسوللي -
ټول پوځونه !
* * *
"حق"
یو ژوندی دی ،
یو حیات دی!
ازلي دی ،
ابدي دی ؛

تل ژوندی دی ،

لا فاني دی

مدام حی دی ، لایموت دی ،

« چې حق راشي باطل تښتي »

دا د حق د ژوند ثبوت دی!

* * *

« حق »

یوه لاره ده ،

یو واټ دی!

د ښکلا په لوري درومي ،

د ځلا په لوري درومي ،

د جنت په لوري درومي ،

د فردوس په نږه کښې تېر دی

د انسان عالي انجام دی ،

سر پاتوب پرې مکمل دی

د ایو پول دی ، د ایو پل دی ،

د صراط په ترې لاره ، د وصال په لوري یون دی !

* * *

«حق»

یو عزم،

یو ثبات دی!

زه د دې سنګر سپاهی یم!

په هُدې لاره راهي یم!

د توپونو، د ټانکونو په صفونو ورګډېږم!

په تش لاس ورسره جنګ کړم!

د باطل له زور او شوره:

نه په شا ځم، نه وېرېږم!

باوري یم، باوري یم!

زه برېږم، زه برېږم!

زه د دې سنګر سپاهی یم!

زه د حق په لار جنګېږم!

که شهید شم، که غازي شم!

په دې هره یوه لاره:

زه د حق کور ته رسېږم!

۱۳۶۳/۶/۲۵

کوټه، فقیر محمد روډ، د پروفیسور سیال کاکړ کور.

# د اختر ورځ

زما امانه ! په ماګرانه ! نن بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده ، ستا اختر دی ، زما هم اختر دی
څنګه اختر ؟ د غم اختر ! او د دردونو اختر !
د فریادونو ، د آهونو ، د ویرونو اختر !

* * *

ته له ما لرې یې او زه یمه له تا نه لرې
نه آورم ستا ورې - ورې ، خوږې - خوږې خبرې
ستا له مستی ، ستا له خوبی ، ستا له خندا محروم یم
ستا له نازونو ، له رازونو مشغولا محروم یم
د تا د غم له کُله هم اخیستلای نشم
د تا له بنګلي تنه لیچه څرخولای نشم
د تا د سترګو په نور سترګې مې غړیږي کله
د تا د مخ شمع مې څخې تر بلیږي کله

زما امانه ! په ماګرانه ! نن بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده ، ستا اختر دی ، زما هم اختر دی

* * *

ته خو ما شوم یې ته به خوبن وې او خندان به اوسې!
له «ثریا»، له «آریانا» سره روان به اوسې!
ته به لوییږې یاد مور او یاد دنیا په غیږ کښې
یاد تو رې، یاد دې او کا کا په غیږ کښې
ته په وړه ژبه دې تول ته «ابه» به وایې!
څه به ترې غواړې هر یوه وته «آه - آه» به وایې!
بنا یې چې زه به دې له ذهن نه وتلی وُم اوس
د تا له مینې به دې شپې و ورځو ایستلی وُم اوس
زما امانه! په ماګرانه! نن بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده، ستا اختر دی زما هم اختر دی

* * *

نه! نه! زه پوه یم، ته ناپوه یې خو بې مینې نه یې
ځکه چې زړه مې یې جدا زما له وینې نه یې
ستا لوړې شعور دی کوچنی زړه دې له الفتره ډک دی
کینه هیڅ نه پیژني ټول له محبته ډک دی
ژبه دې نه ګرځي خو ستر ګې دې حالونه وایي
ستا د خوږې او پاکې مینې ډک رازونه وایي

نماندی .

کتاب « ایرونه او ویرونه » اثر منظوم حبیب الله رفیع همینکه بمن رسید مانند همه آثار شعرای ملی مرا ساعت ها مشغول نگهداشت و در تنهایی های تاریک دوراز وطن بمن تسلی بخشید که الحمدلله درست آموخته بودم که روح آزاد اسیر نمیشود و خون شهید نه می خشکد . سرافشان غازیان زنگ و ملت افغان ننگ نمی پذیرند .

من با رفیع در آوان مصیبت آشنا شدم . آشنائی در مصیبت رشتهٔ همدردی است که دلهای درد دیده را باهم می پیوندد . درینگونه آشنایی حقایق تلخ و دشوار در همه چشمان بیک گونه جلوه می کنند و همه دست هائیکه همدیگر را می فشارند بیک ریسمان چنگ می زنند . آشنایان همدرد دوستان همسنگر میشوند .

رفیع را جوانی یافتم صمیم . اعتماد من بر این پندار یک احساس گوارا و یک امید شایان پرورش بود . پیرمردان درینگونه احوال خویشتن را با چشمان جویندهٔ آرزوهای خود شان ، بویژهٔ آرزوهائیکه خود توان بر آوردن آنرا ندارند ، در روح جوانان می بینند که هرچند تنها بر سیمای شان

زه به یوه شپه چې نه ؤم ته به شوې رنځور راپسې
پوه یم چې اوس به هم کړېږې ته ضرور راپسې
زما امانه ! په ماګرانه ! نن بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده ، ستا اختر دی، زما هم اختر دی

* * *

ته خو ما شوم یې نه یې پوه چې دا بېلتون ولې دی
دا ستا ، زما ، د ټول ملت د مرګ ژوندون ولې دی
دا په زرګونو ډک کورونه اوس سپېره ولې دي؟
دا د وطن مېړني خلک خواره واره ولې دي
دا په زرګونو کورنۍ بې مشره شوي ولې ؟
دا په زرګونو کورنۍ بې کشره شوي ولې ؟
دا د ورو بچو پلرونه وژل شوي ولې؟
دا په لکونو افغانان دي شړل شوي ولې؟
زما امانه ! په ماګرانه! نن بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده ، ستا اختر دی، زما هم اختر دی

* * *

ته نه یې پوه چې ډېر بچیان یتیمان شوي په څه ؟
او ډېر ودان - ودان کورونه دي وران شوي په څه؟

د کوږنیو تودې غېږې سرې شوې په څه؟
د ږېړو مېږنو د نغرې ایرې مړې شوې په څه؟
دېر ماشومان بابا ! بابا! وایي خوب لاړیې نشته
ګرځي ژوندي خو د ژوندون کولو لار یې نشته
له ږېړو مېږنو د بمونو دوړې پورته شولې
دېرې بشرې وې چې د کور په ځای څخ کورته شولې
زما امانه! په ما ګرانه! ننه بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده ستا اختر دی، زما هم اختر دی

* * *

دا اتل پرده چې په وطن کښې سوروحشت راغی
تاریخ ته یاد نه دی یو داسې بربریت راغی
د روس مړئیو په وطن کښې کودتا جوړه کړه
زموږ پر مادي او معنوي شتو یې تالا جوړه کړه
د خپل بادارتودې وسلې یې رامیدان ته کړلې
پر بې شرمه یې ځناور اتل افغان ته کړلې
څوک یې په توپو، مشینګنو او بمونو مړه کړل
نور یې په راز، راز وحشتونو، عذابونو مړه کړل

زما امانہ! پہ ماگرانہ نن بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده، ستا اختر دی، زما م اختر دی

* * *

مېنې سپېرې، کور ونه وران، خونې وېجاړې شولې
لښتې د وینو شول روان ودانۍ شاړې شولې
په نوم د خلکو یې په خلکو ډېر ظلمونه وکړل
تاریخ شرمېږي پرې، چې دوی کوم کوم کارونه وکړل
د روس په لمسه قتل عام د افغانانو کوی
د خوار په نوم باندې ناشندې په خوارانو کوي
په لکو ښځې یې کړې کونډې مېندې بورې کړلې
ددې وطن د زلمو ونې یې سر بورې کړلې
زما امانہ! پہ ماگرانہ! نن بیا هم اختر دی
ورځ د اختر ده، ستا اختر دی، زما م اختر دی

* * *

خو بیا هم زېرې درکوم چې دا لیوان به نه وي
دا د افغان ملت د خاورې دښمنان به نه وي
ژر به ورکېږي، د پردو حلقه بګوش غلامان
دا د روسانو د روبلو نو اوکو پیک نوکران

ز ړې بچيه چې افغــان ملت قـيام کړی دی
د دوی پر ضد يې بريالی جدی اقـدام کــړی دی
دوی به ورکـيږي، دا وطن بـه آزادېږي زمــونږ
دا خور او وور ملت بـه بـېرته راټـولېږي زمونږ
زما امانه! په ماګرانه! ته بيا هم اخـتردی
ورځ د اختر ده ، ستا اختردی، زما هم اختردی

* * *

بېرته به يو ځای شي پــلرونـه د بچـو ونو ســـره
توده به مينه کـړي زامنو او له لوڼو ســـــره
بېرته به يو له بـل بېل شوي ژر وصال ته رســي
داوبو تـږي بـه ضرور آب زلال تــه رســي
څوک چې ژوندي دي ــ بېرته ژوند به په کورونو کوي
څوک چې شهيد شول خوشالي په جنتونو کـوي
که ژوند وو نه او ته به هم بيا يو ځای کېږو وزويه!
لکه پخوا به يو له بـل سره لـو بـېږو زويــه!
زما امانه! په ماګرانه! بيا به هم اخترويي
بيا به اختر، زما به هم د تا به هــم اخـترويي

څنګه اختر؟ د خوشالۍ او د خوندونو اختر
دا سې اختر چې وي به دا دا خترونو اختر

دا ختر ورځ ا شوال ۱۳۹۹

۱۳۵۸/٦/۱

پېښور، کبابیان

## زما جرم

زما جرم له وطن سره ده مینه
په دې مینه مې که سر ځي او س دې ځینه
چې وطن ځي زما سر دې تزې تر سر ځي
تر وطنه به بل څه قدر لرینه

۱۳۵۷/۱۱/۲۷

کابل

# غزل

زه بې شمېرم درته څومره چې کوم - کوم دي ؟
د دنیا غمونه ټول زما په نوم دي !

د آسمان په کنارو کښې شومه ستړي
د بخت ستوري را ته نه ښکاري معدوم دي

نه یې خوشي دي خوښې نه یم راوستي
چې خوښي کوي هغه کسان معلوم دي

شومه دم له اندېښنو نه رابېدار شم
اوخ مې نه لګي ، بستراو کټ مې شوم دي !

ها سمسور - سمسور بڼونه چې اوس نشته
سوځولي د شمال باد سموم دي

چې د تم تکي ایزدي د بشر ژوند ته
دغه بدې - بدې چارې د اتوم دي

د تلو پل دې تل ژوندی شو زما وره کښې
پرې وهلې مې د ترمواو ښکو موم دي

١٣٦٤/٤/١٦

# منزل

دغه لاره چې ته ګورې:

دا چې ډکه په اغزو ده!

دا چې ډکه ده له کاڼو!

دغه لاره چې ته ګورې:

دا چې دروې له پیچومو!

چې تیرېږي په پناه‌ځونو !

دغه لاره چې ته ګورې:

چې غورېږي پرې جازونه!

چې اورېږي پرې اورونه!

دغه لاره چې ته ګورې:

چې فرش شوې په بمونو!

چې ورانېږي په توپونو!

دغه لاره چې ته ګورې،

چې په ستغو ده ختلې!

چې په څوړو رالوېدلې!

دغه لاره چې ته ګورې :

چې د شپې په زړه کښې بروځي!

چې تیارې پرې راخورېږي!

دغه لاره چې ته وینې :

چې لړلې ده په وینو!

چې ساتلې ده په وینو!

هو!

دغه لاره همدا لاره :

د ګلونو لور ته درومي!

د باغونو لور ته درومي!

دغه لاره همدا لاره :

د لوی وات په لوري درومي!

ارت میدان لري په مخکې!

دغه لاره همدا لاره :

د آرام غېږې ته رسي!

د مرام غېږې ته رسي!

دغه لاره همدا لاره :

په هوارو تما مېږي!

د ګلزار غېږې ته لوېږي!

دغه لاره همدا لاره:

د سپېدو آغاز ته رسي!
ښکلوي يې د لمر وړانګې!

دغه لاره همدا لاره:

سر و خرويې ته وروتلي!
سرلوړي لري په پای کښې!
سر منزل د مرامونو
"خپلواکي" لري په پای کښې!

۱۳۶۳/ ۷/۲۲

پېښور، کوز تاکال

# افغان

مېړه هغه دی چې نر مري په میدان مري
د وطن په مقدس عهد او پیمان مري
وطن نه پلوري د بل غلامي نکړي
افغان زيږي، افغان ژوند کوي افغان مري

۱۳۵۸/۲/۲۱، کابل

# سورخزان

«د فلک له چاروخه وکړم کوکار؟
زمولوي هرګل چې خاندي په بهار»
چې نسیم وي موسولي په ګلبڼ کښې
په تونډ باد یې کړي له واره تارپه تار
مانزیګر یې پرن لي سوري سوري کړي
چې وي پرخې تازه کړي په سهار
سنګل مځ یې بورانزوي لا سنګل کړي
نه وي کړي لا بلبلو پرې چغار
یو پر یو یې د خزان په رحم ور کړي
په سر ور کړي د سیلیو تونډ ګوزار
جړاو کړي چې لا سونو د قدرت وي
لاله زار کاندي بدل په خس او خار
د ماشوم غوندي په «هست» و «بود» کړي لې
تار و پود د «هست» نابود کړي په مدار

آشنا شده اند با دلهای شان نا آشنا نیستند .

هر هنرور یک شخصیت دارد که کم یا بیش در هنر وی هویدا میشود . اگرچه چون کلیه اگر نایاب نباشد فراوان کمیاب است نمیتوان این گفته را کلیه خواند زیرا گویندگانی را می شناسیم که در قصاید خویش گدایان طماع هستند و در غزلهای خویش در ادعای مناعت و قناعت غلو میکنند و نیز هستند کسانی که قهرمان پرست اند و معصومانه آدمپرستی میکنند . ارتباط هنر و هنرور حقیقی است که نمیتوان باختصار و اجمال بآن پرداخت که آنگاه نیز نمیتوان از دریافتن حقایق مطمئن بود .

در نظر من صمیمیت رفیع در اشعار او نمایان است و نیز « ایرونه او ویرونه » سراپا بیانگر آلام و مصائبی است که ناگزیر شعرای دورهٔ مصیبت عظمای ملی را همه گان صمیم و حقیقت گو نگهمیدارد زیرا همهٔ شان شاهدان عینی حقیقت های عجیبتر از افسانه هستند .

رفیع تنها شاعر نیست . جوانیست طالب العلم و دانشجو . احساسات و عواطف جوانی او را دانش و معرفت وی هدایت میکند و به ساحهٔ وسعت نظر رهنمون میگردد . رفیع مسلمان و افغان است از ینرو « ایرونه او ویرونه » ممزوجی از مناجات وحماسه های ملی است . باتوکل و ایمان یک جوان مؤمن و باعقیده و باور به شهامت ملت افغان سخن

یو ځل نه دی ، دوه ځل نه دی ، دری ځل نه دی
څو چې دی دی ددې لوبې دي تکرار
هره ورځ نوي ګلان په اوبو یوسي
په هر وخت کې نوې - نوې کاندی چار
لاس دې مات شه ای فلکه ستمګاره
چې څخکله دې پرېښبود و کرار
په سکندر او په چنګېز مودې مُلك وران کړ
بیا انګرېز دې کړ تېرېو ته تیار
اوس دې سره وبا په موږ کړه رانازله
له شماله دې راتېر کړ سور ښامار
د چنګېز خونرېزۍ وولې په وینو
د خلقیانو بې جلبه اقتدار
د زلمو سینې یې سمې کړې تو پو ته
پرې یې جوړ کړ د بمونو درزهار
د ګولو زلمه یې هر خوا اوروله
نراو ښځې یې پرې تو یې کړل انبار
د پرواره زاره لژند په خپلو وینو
د روسي مېنګ الوتکو په بمبار

د وطن په هره برخه هره خواکښې
دی د شوبلو، د ټانکونو غورمبهار
را نیول دي، څملول دي، قتلول دي
په سرو وینو لړل شوی هر دیار
د ځوانانو کوهي کوهي په شپیلو کښې
په لاشونو یې کار غلان کتار-کتار
چې تباه دي ټول د دې خاورې زامن دي
کلیوال دي، که عسکر، که منصبدار
ستړې کو ژاړې ! په سرو وینو اوښکې پرېږدي
دې دا پېښې د ژړا او د خونبار
وطن لوټه-لوټه، کلي-کلي وران شو
اسماني تندر نازل شو په هر ښار
نورستان تورو لوخړو کښې لمبه شو
د کونړ کورونه شول سره هوار
بریکوټ د خاورو کوټ شو په لحظه کې
روغ دي کله چغه سرای دی که اسمار
په نېنګلام کښې د ننګ لام دی ترل شوی
په شیګل کښې شګې سرې دي په انګار

که مومند دي ، که کامه ، که خوګیاني دي
که ګوشته ، که حصارک د ننګرهار
تول بموټو او ټانکونو هوار کړي
چلیدلي پرې توپونه ، ماشیند ار
د لغمان د دولت شاه سینه غلبېل شوه
پاتې نه شو الیشنګ او الینګار
په تګاؤ او په پنجشیر لړې خورې شوې
شول له خاورو سره سم د ژوند آثار
پا څېدلي د ظلم په مقابل کښې
بدخشان ، که سمنګان دی ، که مزار
په بادغیس ، په میمنه کښې درزهار دي
په هرات کښې دی د وینو شنهار
په فراه کښې فرحت نشته د وګړو
غور له غمه بیا پټ شوی په غبار
په هلمند کښې هیلې خاورو کړلې خاورې
پنجوایي او ارغنداب کښې دی ناتار
په بولدک بولک – بولک وریځې راغلې
بې آرامه دی له دوکه کندهار

په روزګان کې روزګار سخت شو لوی خلکو
په تیرین کې تیری مات شول د غدار
په کلات کښې، په شینکي کښې، په مرغه کښې
په سورغر کښې بیا اوربل دی دوامدار
په مقر کې مقرور ګړ شو لود خلکو
قره باغ دی په جنګونو کښې ایسار
د اورګون ځمکه اورګونې شوه په اور کښې
په سرنه، وازه خوا دی ټکسهار
غرجستان غرونه په شنو دوړو کې پټ دي
شهرستان او مالستان دی عزادار
په غزنۍ او په بامیانو کښې اوربل دی
سره ده ځمکه د وردګو، د خروار
په لوګر کښې، په زرمت کښې، په ګردیز کښې
په ځاځیو، سیدکرم دی ترسهار
ستړه ووته د ستو په کندو کښې
په تیره کښې تیري شنه شول وار په وار
د دښمن قوي لښکري کړې نسکوري
د محمد زایو توریالیو په ایثار

په کابل کښې هم او ربل د انتقام دی
پایمال شوی چنداول او پای منار
داد اوربلي لښې پې کړې چې بلې
را تو لېږي کړې لښې به يې دربار
د ملي قهر توپان به يې تو پان کړي
دا چې دی د بل مزدور زمونږ بادار
څوک چې او ربلوي سوځي به پرې خپله
دا فلک دی، دا یې دود دی، دا یې کار
سور خزان د سرو لښو په تېرېدو دی
را نژدې دی د افغان ملت بهار

۱۳۵۸/۵/۱۴

پېښور، د ۸ بکري

# آبادي

«زړه» دې ومرم، «ته» دې ومرې، «مونږ» دې ومرو
خو ژوندی دې وي «وطن» او «آزادي»
چې د وينو سيلاب جوړ شي ملك زرغون شي
تر باران د ورو سته را شي «آبادي»

۱۳۵۷/۱۱/۲۷، کابل

# د اِستقلال لمن

تورې د تېرې ته مې د ډال لمنه ونيوه
بيا مې د "ميرويس" او د "خوشحال" لمنه ونيوه

ما په خپل وطن کښې سوله غوښته، آزادي غوښته
تا د تجاوز جنګ او جدال لمنه ونيوه

لوی سيلاب د خلکو رانسکور کړلې په خټو کې
ځکه دې د لوی صياد د جال لمنه ونيوه

زه به د مهدي په پاکه لاره باندې يون کوم
تا چې د دې عصر د دجال لمنه ونيوه

زه د خدای په مرسته، د ايمان په زور جنګېږمه
تا د روس لستوڼي تر د سوال لمنه ونيوه

ځکه پر تش لاس، زما برې په هر ميدان کښې وي
تا د لېنن ما د ذوالجلال لمنه ونيوه

"الله اکبر"، مې ستا په خوله کښې هورا وچر کړه
ما په خپل جهاد کښې د بلال لمنه ونيوه

ته د مارکس، انګلز او د لینن غیږې ته ولوېدې
ما د خپل «جلال» د خپل «جمال»* لمنه ونیوه
زه د آزادۍ په سپین سحر باندې ایمان لرم
ځکه مې هجران کښې د وصال لمنه ونیوه
نن نه یم کړېږي چې نږدې د روس وحشي منګولو ته
تینګه مې په لاس د استقلال لمنه ونیوه

پښین بازارګی ۱۳۶۳

# وير

لاس مې که خلاص دی خو په ذهن مې زنځیر پروت دی
چې ګران وطن مې د پردو په لاس اسیر پروت دی
څنګه خوښي؟ څنګه خندا؟ څنګه سرور وکړمه؟
چې کور په کور مې د ملت په کور کښې ویر پروت دی!
۱۳۵۷/۱۱/۲۷ کابل

---

* له جلال او جمال نه مراد مولانا جلال الدین بلخي او سید جمال الدین افغاني دي او په دې سربېره د افغاني جلال او جمال عام معنی هم لري.

# میړانه

د وطن په سرله سره تېرېدل

د هېواد په مینه وینې تویول

د تاریخ د میړنیو ننګ ساتل

خپلواکۍ ته سره د ولجه تیارول

سرلوړي ده، ویاړ دی، فخر دی عزت دی

په تاریخ کښې جاویدانه نوم ګټــــــل

* * *

د پردیو په تېرو تورو ورتلل

په ټانکونو، په توپونو ورختل

د ګولیو په باران ورګډېـــدل

د بمونو په اورونو کې لمبـــل

دملي ننګ و ناموس په ځای کول دي

د وطن په لار سرونه جــــــاروﻝ

* * *

په پردیو یرغلګرو یرغلل

استعمار ته خوله په سوک ورماتول

د تېروئیو په سر توره تیرول
ورته لار بېرته د تیښتې بندول
د هیواد د هیواد دوستو زوېو کار دی
د وطن د مور په ننګ راپاڅېدل

***

د قوي دښمن قوت اوبه کول
دایمان په زور قوي وسلې زغمل
په یو ښتو د شهیدانو هسکېدل
په سنګر د علمانو بربېدل
غیرت غواړي، همت غواړي، ایمان غواړي
خپلواکي ګټل، ساتنه او پاللل

۱۳۵۸/۲/۱۱

وردګ، آبدره

# ژوند

دَ حُسَین شَهادَت دَیَزید مَرګ دی
اِسلام ژوندَ مومي تر هرې کربلا پَس

ژباړه: ۲۹ / ۱۰ / ٦۲

# داختر دُعا

بیا دی اختر را روان!

هر مسلمان ته به خوښي او هوسونه راوړي!

د خدای په پاک او په سپېڅلي کور کښې

د «بیت الله» په مقدس انګړ کښې؛

دې را غونډه شوي په لکونو مسلمان د جهان،

د سپین او تور، ژړ له توپیره پرته،

په یوه صف کښې د پاک رب حضور ته سر لګوي؛

د حج د لویې فریضې،

د ابراهیم د سنت

د قربانۍ او د ایثار خاطره بیا نویوي!

* * *

خود افغان

میگوید . آنچه خودش در آغاز کتاب در « داستان اور و ویر » نوشته است محلی برای شرح مزید نمیگذارد . اما باید بافزایم در اینکه میگوید این اشعار او کیف ادبی ندارد تواضع میکند . نظم ونثر او کیف ادبی دارد بویژه که لهجهٔ وردکی از مزایای خاص بهره منداست که زادهٔ بر کنار بودن آن در قلب افغانستان از تاثیرات زبانهای دیگر در شرق و غرب حتی جنوب کشور است.

رفیع در تصویر مصایب و شهامت غازیان و مبارزین ملی قیام عام وتام ملت افغان را در سرتاسر کشور تمثیل میکند و پاس تقدس وحدت ملی را بحد اعلی نگهمیدارد و بهردو زبان مردم خود سخن می سراید.

پیشتر از حقیقت پسندی شعرای دورهٔ مصیبت سخن کردیم ، حقیقت را شناختن ، آنرا پسندیدن وبرگزیدن کار متفکرین است. این امر دماغ انسان است . ربط آن با روحیهٔ انسان بویژهٔ گویندگان شایان اعتناست . روح ناتوان از کشف حقایق تلخ ودشوار که کار دماغ است متاثر می شود و به آنچه آنرا بدبینی می گویند می گراید و اما روح توانا و نیرومند در برابر آن قیام می کند و به اصطلاح خوشبین می پاید .

من از ستایشگران حقیقت پسندان خوشبین هستم یا آنکه میخواهم باشم . رفیع را به این گروه اخیر منسوب میدانم . چون مؤمن

د دې سپېځلي مسلمان له کوره
خوښې کلونه کیږي کډه کړې،
اختر رادرومي خوښي نه راولي،
سترګې توریږي په باروتو، په رنځو باندې نه با
لاس هم سره کیږي؛
په نوکریزونه، په وینو باندې!
قرباني هم دا څلور کاله کیږي،
پر له پسې پې کاندې،

* * *

که ابراهیمؑ د خپل خوږه زوی قرباني کوله
زموږ اولس:
د پلار، د مور، د ورور، د زوی قرباني،
کوي په ډېر عالي همت او ایثار؛
په ډېر همت له خپله ماله تېر!
له ځانه تېر دی،
که آزادي نه وي له ژونده له جهانه تېر دی!

* * *

نو لوییږ خدایه! د جهان مالکه!

د هست وبود ، کون ومکان مالکه !

ته کړې قبوله !

داد اخلاص، داد ایمان قرباني !

داد سپیڅلي مسلمان قرباني !

د میړني غیور افغان قرباني!

ملک یې آزاد کړې! د پردو د استعمار له واکه !

د سره ښامار له واکه !

دوی د اسلام په مقدس دین باندې ننګ کړی دی!

دوی د افغان د آزادۍ د پاره جنګ کړی دی !

او دوی ،

دوی د وحشت په هیولا باندې غورځنګ کړی دی!

۱۳٦۱/٦/۳۰

پېښور ،کبابیان

# زندان

وطن لوټ-لوټ ، تیت-تیت وران شو

کور په کور د هر افغان په کور افغان شو

دا عجب غونډې د خلکو حکومت دی !

چې هر چا ته وطن ګور شو، یا زندان شو

کابل: ۲۱/ ۲/ ۵۸

# سلسلې

ورځې او شپې مې د غمونو سلسلې دي راځي
د زړه انګړ ته د ويرونو سلسلې دي راځي

زه به يې کومې کومې ژاړم جنازه بې کومې
د خوانيمرګوارمانونو سلسلې دي راځي

په هر قدم کښې نوی دام دی، نوې لومه خوره
زما په مخ کښې د داموېو سلسلې دي راځي

د وينې نيلواد همت د يوه مې بله ساتي
له هرې خوا د توپانونو سلسلې دي راځي

ای د عمرونو لامبوزنه وار خطا دې نکړي
د ژوند درياب کښې د موجونو سلسلې دي راځي

د دنيا بامه ! عظمت ته دې سجدې لګوي
د فرعونانو د سرونو سلسلې دي راځي

له سکندره، تر چنګيز، انګريزاو روسه پورې
ستا از هيبت ته د پوځونو سلسلې دي راځي

د سپید و توره راته ښیي چې سحر نژدې دی
پر توره شپه د ځوراورونو سلسلې دي راځي
ښکارې چې بیا به مې په لاسو کښې کړې واچوي
«رفیعا» بیا دي د شعرونو سلسلې دي راځي

۱۳۶۳/۱/۲۹

# د پلار په لار

د وطن لار کښې که مرګ وي که زندان وي
د وطن رېښتیني زوی و ته آسان وي
د خپل پلار د ننګ عزت په لار به درومي
له دې لارې به وانه وړي چې افغان وي

۱۳۵۸/۱۲/۵

کابل ، د څرخي پله زندان

# لوړ سر

۶۳/۷/۱۵ پېښور

نه غواړمه خدایه ښش محل ته خاته نه غواړم
لوړ سر مې ټیټ مه کړې ټیټو - ټیټو دروازو ته

# د کمونیزم څېره

بس رسوا شو اوس حساب د کمونیزم
نه آبرو شته ده ، نه آب د کمونیزم

کودتاوې ، قتل عام ترېنه زیږېږي
دېته وایي انقلاب د کمونیزم

ژوندیې دردوي ، غم وي ، ویروي ، دوک وي ، آه وي
چې نازلشي پرې عذاب د کمونیزم

باغیچه یې په سرو وینو اوبه کیږي
ډک له وینو تل تالاب د کمونیزم

د منطق او علم نخښه یې نشته
سفسطه دی "سوال او ځواب" د کمونیزم

د انسان له قیمتي وینو نه پرته
باران نه لري سحاب د کمونیزم

په عمل کښې سر چپه د تطبیق ور دی
تش الفاظ دي سور کتاب د کمونیزم

د بیزوله زویو څخه سرېتوب غواړي
ځارویتوب دی انتخاب د کمونیزم

سور پرچم د خونړي ښکيلاک سمبول دی
ترې وربېږي سور خوناب د کمونيزم
ای په سره کتاب کښې ډوب سرديې هسک کړه
بې تعبير دی رنګين خواب د کمونيزم
هغوی هم ددې ښامار ترستوني تېر شي
چې پرانيزي چې پرته باب د کمونيزم
خپله هم په خپلو وينو باندې سره شول
څوک چې کړ شول په سرخاب د کمونيزم
هم يې ژوند او هم مردن مردار - مردار وي
چې ډوب شوي په مرداب د کمونيزم
چې په سره کښتۍ سواره ځي په دې سيندکې
غرقوي به يې ګرداب د کمونيزم
هغه مُلک بيا په سره اورکښې سوځيدلی
چې پرې شوی فتح الباب د کمونيزم
هرمزدور به يې بيا دستي نقش زمين وي
چې په قارشي پرې ارباب د کمونيزم
په خدمت يې چې ځان ستړی او تن آب کړ
شو په غاړه يې تناب د کمونيزم

په نښه کښې شیشه په . . . . . ولاړه
چې یې ښځېلي وو شراب د کمونیزم[3]

په بالښت یې روح له باد سره روان شو
چې وُ پروت پر تخت خواب د کمونیزم[4]

وفادار و سره هم وفادار نه دی[5]
دا قانون دی او دا داب د کمونیزم

توپ وي، ټانک وي، بم وي، درزوي، دروزي، دزوي
تباه کُن دی ټول اسباب د کمونیزم

بم یې ونه سرچپه کړې ولې پورته
لغوې دی انقلاب د کمونیزم[6]

حق په اورتو، بورتو نشي پټېدولې
که هرڅو غاپي کلاب د کمونیزم

تندې لاندې کړل په چول بیابان کې
چې وو سم څوك په سُراب د کمونیزم

حبشي غوندې له لوږې هلاکیږي[7]
چې راغلي پرې سیلاب د کمونیزم

چین هم پوه شو پس له ډېرو ترنګولو
چې بې سُره دی رباب د کمونیزم[8]

چرېښنکو[٩] که هر څو وچېږي وخت تېر دی
بېرته نه راګرځي آب د کمونيزم

د اولس د قهر اور تر به ورلوېږي
څوک چې پښېږدي په رکاب د کمونيزم

د بلا مخ يې څرګند شو ملتول جهان ته
څيرې شوی دی نقاب د کمونيزم

اوس د خلکو تر دب دوب لاندې لښکور دی
ختم شوی نور د باب د کمونيزم

په منطق نه ځي، په تېلو ځي، په ټانک ځي
دی د اکاډې اوس کرياب د کمونيزم

چې د شپې په منزل ځي څراغ راواخله
ځلا نه لري شهاب د کمونيزم

ها کتان چې کمونست ورته جامې وي
اوس څيرلی دی مهتاب[١٠] د کمونيزم

له لمر څرکه تر زواله و کسوف کېښې
په غروب دی سور آفتاب د کمونيزم

اوس د وينې د فشار په رنځ اخته دی
چې په وينو و شباب د کمونيزم

دافغان د تیرې تورې په رڼا کښې
مخ لیده شي بې حجاب د کمونیزم

هغه لوړ ځي، دده ټیټ دي خواهشونه
په دام نه نښلي عقاب ، د کمونیزم

مسلمان افغانه لوی ویاړ دې نصیب شو
چې دې وټاکه پایاب د کمونیزم

نه دیرش بیت قصیده یې د توان سنه ده
کتاب غواړي هرکتاب د کمونیزم

۱۳۶۳

---

* پایلیکونه :

۱- د کمونیزم سوال ځواب = د کمونیزم دیالکتیک مطلب دی.

۲- د ډاروین هغې نظریې ته اشاره ده چې انسان د بیزو اولاد بولي او کمونستان یې هم د خپل تکامل د قانون له مخې په کلکه مني.

۳- کله چې خلقیان او پرچمیان په قدرت سره وراڼ شول او خلقیانو پرچمیان زندانونو ته واچول ، د روس له خوا یې ددې اجازه نه ورکوله چې ویې وژني نو خلقیانو د خپل زړه سړولو د پاره د زجر او شکنجې په وخت کښې په پرچمیانو باندې د فانټا بوتل استعمالول په دې بیت کښې

هلدې پېښې ته اشاره ده .

(۴) دروزي د بالبنت په وسیله د تره کي شرمېدلي مردارېدو ته اشاره ده .

۵- د تره کي وفادار شاګرد حفیظ الله لعین ته اشاره ده .

۶- چا وویل په کندهار کښې دروسانو یوه بمبارۍ زېږه ونه له ځمکې رارایسته او په خاښونوېي وډروله ، ما ویل د انقلاب لغوي معنی هم داده .

۷- د حبشي وروستۍ کاختې ته اشاره ده .

۸- د کمونیزم د نیمګړتیا او زړښت په باب د چین د حکومت او کمونست ګوند وروستي اعلان ته اشاره ده .

۹- چرینکو د روس دیکتاتور .

۱۰- وایي اصیل کتان د سپوږمۍ په وړاندې څیرېږي چې د دري او پښتو په زاړه ادب کښې ددې عقیدې په باب ډېر شعرونه موندل کېږي ، په دې بیت کښې هم دې عقیدې ته اشاره ده .

است از رحمت خدا نومید نمی شود. وچون افغان است به اندیشهٔ ناکامی تن در نمی دهد. اکثر اشعار وی به پیام پیروزی به مقطع میرسد و پایان شب سیاه را سپید می سازد.

میگوید:. . . .

زه باوري یم چې دا کېږي

او دېر ژر کېږي . . . .

روحیهٔ این باور در اکثر اشعار رفیع نمایان است وچنان مینماید که میترسد مبادا خوانندهٔ خود را بتاریکی مناظر مصیبت ملی برده باشد ومی شتابد که شمعی از امید بافروزد و اورا بروشنی های پیروزی برآلام رهبر شود. من مسرورهستم که خود را بااین شاعر جوان ملی باهمه ناتوانی و پیری همنوا می یابم :

آن کشور بامی که خراسان جهان بود
از شامت بد یکدود می تیره چو شام است

ایندم چو خسوفیست که تاچشم زنی، باز
خورشید ببینی که فزا از لب بام است

امید من آنست که نومید نگردی
ږراک چو نومید شدی کار. تمام است

در پارچهٔ زیبای د « آزادی شپې » نیز روح آرزومند شاعر

# خبرې نه کوي

توپ او بم عزيزي خو انسان خبرې نه کوي
دور د وحشت شو دا حيوان خبرې نه کوي

لا لا هم موږ يم نه د پرځنده ن رازونه هلته وو
چا ويلي دا دي چې بستان خبرې نه کوي

ګوره چې زما د سوي زړه حال در ته وايي
نه مې لوېږي زړه ته چې ګريوان خبرې نه کوي

خلک دا پوهېږي د تودې مينې داستان وايي
څوک وايي چې سوي پتنګان خبرې نه کوي

کوم چې پرېږي شلوي "مسکو" بشر، بشر دوستي وايي
دا خوشې وېناده چې خرسان خبرې نه کوي

وېرې د غيرت کيسې يې خوله کښې د هر زخم دي
نه منمه دا چې شهيدان خبرې نــه کـوي

کسه اپه شفق کښې د شهيد د وينو کرښې دي
ولې انکاري يې چې آسمان خبرې نه کوي

ستړګې يې د ظلم او وحشت داستان په جار وايي
خير دې کړ د غېږې يتيمان خبرې نه کوي
او ښکلو اوسلګو مې د خبرو شر به ګونګه کړه
ګوره مې ديوان ترڅې ديوان خبرې نه کوي

۱۳۶۲/۳/۵

باجوړ، ښنار

# دخره مينه

خلقيان وايي چې روسان زموږ دوستان دي
دي دوستان يې دا وينا نه ده غلته
خود خرس دوستي وژل دي او خيرل دي
څه ښه وايي دخره مينه ده لغته

۱۳۶۱/۹/۲۱

پېښور

# دآزادي شپې

زما د ژوند سيمه يې لاندې کړله
پرې را خورې شوې خونړۍ تورې شپې
په وېرې ولړلې سر تر پايه
زما د ژوند د هيلو ډکې شپې

* * *

شپې دي او شپې دي پسې شپې دي شپې دي
يو په بل پسې لګيا دي راځي
د تورو شپو او سپينو شپو ځنځير دی
ټولې تيارې - تيارې بيا - بيا دي راځي

* * *

که لمر سپوږمۍ ده او که ستوري لري
په وينو ډوب دي رڼايي يې نشته
ساتونږ ګرځي ګړې هم ډکيږي
شپه پسې شپه ده سبايي يې نشته

* * *

خو د حق نور را ته دا زیری کوي
چې ژر به څېره د سبا راځي
د سره وحشت دا تور کابوس به نه وي
په ملک به هره خوا رڼا راځي

* * *

د شهید وینه به رنګ کوته راوړي
د امید وګلان به وغوړېږي
د غازي توره به رڼا وکاندي
د آزادی شپې به ورسیږي

۱۳۶۰/۹/۴
کابل

# د نور خلي

پېرکسان دي چې دي تللي پسې تللي
پاتې شوي یې نه نخښې دي نه کلي
خو چې لار د شهادت یې ده نیولې
ابدي یې دي پرې ایښې د نور خلي

پښین، پازارګی ۱۳۶۴/۳/۱۵

# له ما خوبني له ما طرب مه غواړه

له ما مه غواړه د غزالو د مستۍ غزلې !
مه کوه هيله د کيسو ، د قصيدو ، د مدحو !
مه کړه آرزو د لړزوونکو ، پاروونکو نظمو !
له ما خوبني له ما طرب مه غواړه !
زه د الم د توپاني بحر يو خاشکی يمه !
زه د ستم له اوره پورته يو بڅرکی يمه !
زه د وحشت له تورو لړو نه راوتې يوه څړيکه يمه !
زه د ويرونو له جهانه يوه اوښکه يمه !

* * *

د تورو سترګو د سپين مخ خبرې ،
د غوړو اوربل او د سرو شونډو خندا ،
د معشوقې د عشق او مينې دنيا ،
ها د نازونو د نيازونو جهان ،
ها د ګونګرو او د پايزيب شرنګهار ،
له ما دې پاتې !
زه ورځلاص نه يم

زما د میني په دنیا باندې یرغل شوی دی!

زما د ناز ماڼۍ د ظلم اور ذرې ـ ذرې کړه!

(نو): له ما،

له ما خوښي، له ما طرب مه غواړئ!

زه د الم د توپاني بحر پوښاخکی یمه

زه د ستم له اوره پوره یو بخرکی یمه!

زه د وحشت له توره ورونه راوتې یوه څریکه یمه!

زه د ویرونو له جهانه یوه اوښکه یمه!

* * *

زما د خوږ وطن تنکي ـ تنکي ځوانان وهرديږي!

زما په ګران وطن کښې پیغلې شنه دي، نجونې شنه دي!

خوتوري ستړګې يې د اوبنکو بهیرو وینځلې

پر نرمو شونډو باندې رنګ د د ندا سو نذرې

پترې د وینو يې نیولې وي تل،

وسابل يې جړدی.

د ګودرونو له ځنګونو د سنګرو څنګ ته

دي را ټول شوي ـ

له غلیم سره د غزې وهي.

او قربانيږي د وطن په لار کښې .

اوردی سرې وينې دي ،

ويرونه دي ،

د وېرې دنيا !

(نو) : له ما ،

له ما خوښي ، له ما طرب مه غواړۍ !

زه د الم د توپاني بحر يو ښاخکی يمه !

زه د ستم له اوره پورته يو بڅرکی يمه ؟

زه د وحشت له تورو لړونه راوتې يوه ځړيکه يمه !

زه د ويرونو له جهانه يوه اوښکه يمه !

* * *

زما په خاوره کښې د وينو تالابونه جوړ دي !

زما اولس تر !

د وحشي ښکر له لاسه ځخه !

په هره ورځ باندې تازه - تازه غمونه جوړيږي !

چې را په ياد کړمه ،

ها سرې ورځې زما د وطن !

هغه په سرو وينو لړلي شهيدان د هغې !

د وجدان رګ - رګ مې لنبه - لنبه شي ،

د انتقام لنبه

خوله مې له وینو ډکه ،

آه مې سوړ دی

(نو) :

له ما

له ما خوښي ، له ما طرب مه غواړئ !

زه د الم د توپاني بحر یو خاشکی یمه

زه د ستم له اوره پورته یو بخرکی یمه !

زه د وحشت له تورو لړو نړاوتې یوه کړېکه یمه !

زه د ویرونو له جهانه یوه اوښکه یمه !

* * *

زما پر زخمي - زخمي وطن کښې

خندا ګناه نشته !

بس د شهید ،

تنکي زخمونه په خندا ښکاري ،

لکه غاټول پر هره خوا ښکاري ،

مجنون لاسونه سره کوي

دوطن زوی مې په خپل کور آباد وي !

د پښتون له پېښه ورو سره

د دوی د ژوند واك او اختيار نه وي

د ظلم او زور د تورو شپو ګرېوان

د خپلواکۍ نور ورخيرلی وي

د حقيقت لمر راختلی وي

خو

څوچې تياره وي، توره شپه وي د وحشت په وطن !

(نو)

له ما،

له ما خوښي، له ما طرب مه غواړئ !

زه دالم د تو پاني بحر يو څاڅکی يمه !

زه دستم له اوره پورته يو بڅرکی يمه !

زه د وحشت له تورو لږو نه راوتې يوه کرېکه يمه

زه د ويرونو له جهانه يوه اوښکه يمه !

له ما مه غواړئ د غزالو د مستۍ غزلې !

مه کوئ هيله د ګيسو، د قصيدو د مدحو !

مه کړئ آرزو د لړزوونکو، پارونکو نظمو !

چون سپیدهٔ امید در افق تیرهٔ حوادث سیاه و شوم تبسم میکند و بر هنگامه های هولناک می خندد و از پیروزی روشنائی بر ظلمت و غلبهٔ حق بر باطل نوید میدهد .

هنگامیکه من این پارچه را خواندم پنداشتم بر مزار شهیدی ایستاده ام که از خاك او گل سرخ روییده است و سکوت ژرف مرا به ثنا و درود وامیدارد . ربط این احساس روحی با شعر از مجهولات است و آنرا باید در ورای بینش و دانش خویش جستجو کنیم . آیا می توانیم به این سؤال که « رابطهٔ آب و گوهر چیست؟» پاسخ بگوئیم؟ ! شاید دردی که دل مرا فرامیگیرد و رنجی که روح مرا می آزارد زادهٔ حزن و سوگ نیست و احساس حقیقتی است که بر سعادت و شهامت آن شهید کرامت که رفیع در بارهٔ وی سخن میکند ، رشک می برم :

د شهید وینه به رنګونه راوړي
د امید وګلان به وغــــوړېږي

یا آنکه می پندارم در پهلوی آرزوی راستین خویش ایستاده ام ، خواستنهٔ بهین خود را می بینم و در برابر آمال آفرین خویش جا گرفته ام امّا نمیتوانم بر آن برسم . چندانکه دامن آرزوها و امیدها دراز میگردد دست من کوتاه میشود زیرا هنوز زنده هستم وبا

# ږلۍ او ګولۍ

وینا وال

حبیب الله رفیــع

۱۳۶۷

- د کتاب نوم : بلهٔ او ګوله
- وینا وال : حبیب الله رفیع
- د چاپ کال : ۱۳۶۷
- خطاط : شاه محمود پتنګ نقشبندي



# تړون

د هغو سرلوړو شهیدانو په نوم

چې

په میړانه د ګولیو په ږلیو ورګډ شول

خو

خپل ناولي دښمن ته یې سر ونه

ټیټ نه کړل

په مینه

حبیب الله رفیع

# لړ